

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان
دا هېواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

مضمون: پښتو
مؤلفین: د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې د درسي کتابونو مؤلفین
ایډیټ کوونکي: د پښتو ژبې او ادبیاتو د ایډیټ څانګې غړي
ټولګی: دریم
د متن ژبه: پښتو
انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست
خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست
د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي
د چاپ ځای: کابل
چاپخونه:
بریښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af



دا کتاب د "افغان ماشومان یې لولي" پروژې په تخنیکي مرسته تألیف شوی دی.

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو چې موږ ته يې ژوند رابښلی او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراگانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږگوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نه شو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې گران زده کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له درباره څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وگړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# لړلیک

| اونۍ | مخ |
|---|---|
| لومړۍ اونۍ | ۱ - ٦ |
| دویمه اونۍ | ۷ - ۱۲ |
| دریمه اونۍ | ۱۳ - ۱۸ |
| څلورمه اونۍ | ۱۹ - ۲٤ |
| پنځمه اونۍ | ۲٥ - ۳۰ |
| شپږمه اونۍ | ۳۱ - ۳٦ |
| اوومه اونۍ | ۳۷ - ٤۲ |
| اتمه اونۍ | ٤۳ - ٤۸ |
| نهمه اونۍ | ٤۹ - ٥٤ |
| لسمه اونۍ | ٥٥ - ٦۰ |
| یوولسمه اونۍ | ٦۱ - ٦٦ |
| دولسمه اونۍ | ٦۷ - ۷۲ |
| دیارلسمه اونۍ | ۷۳ - ۷۸ |
| څوارلسمه اونۍ | ۷۹ - ۸٤ |
| پنځلسمه اونۍ | ۸٥ - ۹۰ |
| شپاړسمه اونۍ | ۹۱ - ۹٦ |
| اووه لسمه اونۍ | ۹۷ - ۱۰۲ |
| اتلسمه اونۍ | ۱۰۳ - ۱۰۸ |
| نولسمه اونۍ | ۱۰۹ - ۱۱٤ |
| شلمه اونۍ | ۱۱٥ - ۱۲۰ |
| یو ویشتمه اونۍ | ۱۲۱ - ۱۲٦ |
| دوه ویشتمه اونۍ | ۱۲۷ - ۱۳۲ |
| درویشتمه اونۍ | ۱۳۳ - ۱۳۸ |
| څلور ویشتمه اونۍ | ۱۳۹ - ۱٤٤ |
| پنځه ویشتمه اونۍ | ۱٤٥ - ۱٥۰ |
| شپږ ویشتمه اونۍ | ۱٥۱ - ۱٥٦ |
| اووه ویشتمه اونۍ | ۱٥۷ - ۱٦۲ |
| اته ویشتمه اونۍ | ۱٦۳ - ۱٦۸ |


توري او کلمې


| ا | آ | ب | پ | ت | ټ | ث |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| اللّٰه ﷻ | آلو | بابا | پښې | حرکت | ټولګی | ثواب |
| انار | آسمان | ژبه | توپ | سترګې | بوټ | وارث |


مخلوقات خالق نعمتونه


# اللّٰه ﷻ




د اللّٰه ﷻ شکر څنګه ادا کولی شو؟

موږ اللّٰه ﷻ پیدا کړي یو. اللّٰه ﷻ د ټولو مخلوقاتو خالق دی.

اللّٰه ﷻ موږ ته ډېر نعمتونه راکړي دي.

- عقل یې راکړی دی چې ښه او بد ورباندې وپېژنو.
- ژبه یې راکړې ده چې ښې خبرې ورباندې وکړو. په ژبه باید د اللّٰه ﷻ ذکر وکړو.
- سترګې یې راکړې دي چې شیان ورباندې ووینو.
- لاسونه یې راکړي دي چې ښه کارونه ورباندې وکړو.
- پښې یې راکړې دي چې ورباندې وګرځو. نو باید د اللّٰه ﷻ عبادت وکړو.

امر یې ومنو او د نعمتونو شکر یې ادا کړو.

## انځوریزې کلمې












مفرد

جمع





## د لغتونو زېرمه

| د زده کوونکي بکس | | اداره |
| --- | --- | --- |
| پنسل پاک | خوکۍ | ترقي تعلیم |
| | کتابچه | |
| | د حاضرۍ کتاب | |
| | الماري | |
| | رنګه قلمونه | |
| | ترقي تعلیم | |
| | پنسل | |
| | مدیر | |
| | کتاب | |
| | پنسل پاک | |



## د لومړي متن بیا لوستل






توري او کلمې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ج | چ | ح | خ | څ | ځ |
| جومات | چمن | حمید | خوندي | څپلۍ | ځنګل |
| حج | وچ | محمد ﷺ | مخ | سمڅه | ښځه |




اُمتیان　تعلیم　فرض

# حضرت مُحَمَّد ﷺ



څنګه د حضرت مُحَمَّد ﷺ ښه اُمتیان کېدای شو؟

الله جَلَّ جَلَالُهُ حضرت مُحَمَّد ﷺ د انسانانو د لارښوونې لپاره رالېږلی دی.

حضرت مُحَمَّد ﷺ له ماشومتوب څخه د ښو اخلاقو څښتن و. تل به يې رښتيا ویل. امانت به يې خوندي ساتل، ځکه به ټولو امین باله. حضرت مُحَمَّد ﷺ به خلک ښو کارونو ته هڅول. حضرت مُحَمَّد ﷺ فرمايي: ((د علم زده کړه پر هر نارینه او ښځینه مسلمان فرض ده.)) نو باید:

- علم زده کړو.
- رښتيا وواېو او ښه کارونه وکړو.
- امانت ښه وساتو.

که د حضرت مُحَمَّد ﷺ لارښوونې عملي کړو، ښه اُمتیان به يې شو.



## جملې





۱. قرآن کریم پر چا نازل شوی دی؟

۲. موږ الله جَلَّ جَلَالُهُ پیدا کړي یو ـــ.

۳. موږ خپل ټولګی پاک ساتو ـــ

۴. موږ یو له بل سره مرسته کوو ـــ

۵. موږ د چا اُمتیان یو ـــ



## د لغتونو زېرمه



تخته
توپ
کتاب
تخته پاک
چمن
مېزونه
لوبغاړی
جال
تباشیر
بېټ

| ټولګی | دلوبو میدان |
|---|---|
| تخته | توپ |
| | |
| | |
| | |
| | |



## د دویم متن بیا لوستل







## غوږ نیول او خبرې کول

### ذهني وده: ښه غوږ نیول



مخامخ کېدل
چوپ پاتې کېدل
د سر په اشارې
سره د معلوماتو
تاییدول
پوښتنې کول
د سترګو تماس





## نوښتي لیکنه



**څنګه کولی شو د خلکو خبرو ته ښه غوږ ونیسو؟**

له چا سره چې خبرې کوو باید ورته وګورو.

کله چې څوک خبرې راته کوي، موږ باید چوپ واوسو او خبرې یې په غور سره واورو.

| |
|---|
| پوښتنې |
| نوبت |
| غوږ |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل





## کلمې او جملې

الف








## د لومړي او دویم متن بیا لوستل






## اِملا





ب

۱. ډېوه ښوونځي ته ځي ___ .

۲. ستاسو ښوونکی څه نومېږي ___ ؟

۳. زه له ښوونځي سره مینه لرم ___

۴. ستاسو ښوونځی چېرته دی ___

۵. هیله زما ټولګیواله ده ___

ج

ګلان، کتابونه، ونې، اوبه، مېزونه، شین، څوکۍ، الماری، مجله، بوټي

| کتابتون | چمن |
| --- | --- |
| مجله | ګلان |
| ___ | ___ |
| ___ | ___ |
| ___ | ___ |
| ___ | ___ |










توري او کلمې

| ذ | ډ | د |
|---|---|---|
| ذره بين | ډنډ | دنده |
| کاغذ | پنډ | ژوند |




پوهه - خدمت - اسانتياوې

# پوهه




پوهه څنګه حاصلولی شو؟

ښوونځی د زده کړې ځای دی. په ښوونځي کې د نجونو او هلکانو پوهه زياتېږي. پوهه د دې لپاره زياتوو چې ژوند مو ښه شي. په پوهه ځان، کورنۍ او هېواد ته خدمت کولی شو. د دې لپاره چې پوهه مو ډېره شي، بايد:

- د ښوونکو خبرو ته غوږ ونيسو.
- خپل درسونه ولولو او په معنا يې ځان پوه کړو.
- کورنۍ دنده ترسره کړو.
- د ښوونځي د درسونو ترڅنګ نوره مطالعه هم وکړو.
- ګرانو زده کوونکو! که پورتنيو لارښوونو ته پام وکړو پوهه به مو ډېره شي.



## کلمې



| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | مېز | کتابونه | هلکان | توپ |
| ۲ | زده‌کوونکي | هېواد | نجوني | قلمونه |
| ۳ | کتابچې | بکسونه | ځان | کمپیوټرونه |
| ۴ | ښوونکي | انځورونه | ټولګی | تخته |
| ۵ | ښوونځی | پنسل پاکونه | تباشیر | کاغذونه |
| ۶ | ګلان | سرښوونکی | ونې | څوکۍ |



## د لغتونو زېرمه



| الف | ب |
|---|---|
| رنګه قلمونه | تخته |
| پنسل | مدیر |
| تخته پاک | درس ورکول |
| اداره | رسمول |
| ښوونکی | پنسل تراش |



## د لومړي متن بیا لوستل





توري او کلمې



| ړ | ز | ژ | ړ | ر |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ږمنځ | ژرنده | زمرُد | ړنګ | رڼا |
| کېږدۍ | روژه | پیاز | ربړ | کور |



کتابتون | مناسب | مطالعه



## مطالعه

مطالعه څنګه وکړو؟



د کتاب او نورو لیکنو لوستلو ته مطالعه وايي. کور، ښوونځی او کتابتون د مطالعې لپاره مناسب ځایونه دي. په پارکونو او باغونو کې هم مطالعه کولای شو. د مطالعې پر وخت ناسم کېناستل او نامناسبه رڼا تاوان لري، نو باید:

- په لږه رڼا کې مطالعه ونه کړو.
- رڼا دې د شا یا څنګ له خوا پر کتاب ولګېږي.
- موږ باید په کړوپه ملا مطالعه ونه کړو.
- کتاب له سترګو څخه دېرش سانتي متره لرې ونیسو.
- په ځیر سره مطالعه وکړو.
- د مطالعې په وخت کې ټول پام کتاب ته واړوو.




## جملې



۱. باید په لږه رڼا کې مطالعه ونه کړو ـــ.

۲. د مطالعې لپاره کوم ځایونه مناسب دي ـــ؟

۳. مور ښوونځي ته د زده کړې لپاره ځو ـــ

۴. تاسو خو کتابونه لرئ ـــ

۵. زه له ښوونځي سره مینه لرم ـــ




## د لغتونو زېرمه

| ب | الف |
|---|---|
| کتابچه | ښوونځی |
| نی | زنګ |
| ښوونکی | قلم |
| ساعت | مشوانۍ |
| د لوبو میدان | توپ |





د دویم متن بیا لوستل




## غوږ نیول او خبرې کول



ذهني وده: پام ساتل






## نوښتي لیکنه

تاسو څنګه خپلو ورځنیو کارونو ته پام ساتئ؟

| ژوره ساه |
| --- |
| پام |
| مناسب ځای |

زه د درس لوستلو پر مهال شورماشور آراموم.

زه د لوستلو پر مهال د خط لاندې خپله ګوته تېروم.




## د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې

**الف**

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱. | کاغذ | قلم | بکسونه |
| ۲. | خط | کتاب | هلکان |
| ۳. | پاڼې | مېز | ښوونځی |
| ۴. | ګل | ساعتونه | ګېلاس |





**ب**

۱. باید په ځیر سره مطالعه وکړو ___ .
۲. کتابونه څنګه وساتو ___ ؟
۳. مور ښوونځي ته ځو ___
۴. تاسې څو کتابونه لرئ ___
۵. زه له ښوونځي سره مینه لرم ___

**ج**

| الف | ب |
|---|---|
| ګلان | اوبه |
| ګېلاس | کتابچه |
| قلم | پاڼې |
| بکسونه | کتابونه |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل










## املا




توري او کلمې


| | | |
|---|---|---|
| س | ش | ښ |
| سلام | شفتالو | ښار |
| مرسته | داش | خوښ |


مزاحمت | مرسته | پاملرنه


# ښه ټولګیوال




څنګه ښه ټولګیوال کېدلای شو؟

ښه ټولګیوال یو بل ته سلام کوي. په درسونو کې له یو بل سره مرسته کوي. د مطالعې پر وخت ټولګیوالو ته مزاحمت نه کوي. له نورو ټولګیوالو سره مرسته کوي. پر یو بل مهربانه وي. یوځای لوبې کوي. همدارنګه د دې لپاره چې ښه ټولګیوال واوسو، باید:

- د ټولګیوالو خبرو ته غوږ ونیسو.
- څه چې ځان ته خوښوو، نورو ته یې هم خوښ کړو.
- له ټولګیوالو سره په درسونو کې مرسته وکړو.
- که پورتنیو ټکو ته پاملرنه وکړو، ښه ټولګیوال کېدلای شو.



## کلمې



| ب | الف |
|---|---|
| قلمونه | مېز |
| کتابچې | قلم |
| مڼې | توپ |
| توپونه | مڼه |
| مېزونه | کتابچه |



## د لغتونو زېرمه



| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بزگر | باباغر | تورغر | سپین غر | ۱. |
| قلم | خط کشونه | گل | کتاب | ۲. |
| بېټ | تیږه | لوبه | لوبغاړي | ۳. |
| ونه | کتابونه | کاغذ | الماری | ۴. |
| کمپیوټرونه | ښه | ښکلې | ښایسته | ۵. |
| ماشوم | زنگ | هلکان | نجونې | ۶. |



## د لومړي متن بیا لوستل





توري او کلمې



| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ص | ض | ط | ظ | ع | غ |
| صابون | ضرب | طاووس | ظاهر | علم | غوږ |
| اخلاص | حوض | احتياط | لحاظ | نعناع | بيرغ |



غوسه — دوست — حوصله



# کتاب




نه درتـــه غوســه کـوي — نه درنه ګیله کـوي

ښه دوست او ملګرى دى — ډېــره حــوصله کـــوي

ته کـــه يې ملګــرى شې — ډېر خـــه بـه درونيـــي

بدو تـه دې نـه پــرېږدي — ښـــه ښــه به درونيــي

نــوم يې دى کتاب کتاب — ښه ملګرى خوند کــوي

ښه دى چـــې کتاب سره — څوک په مينه ژوند کوي





## جملې



۱. اکرام زما ښه تولګیوال دی ___ .

۲. ډېره ولې ښوونځي ته نه ده راغلې ___ ؟

۳. مور ټول کورنۍ دنده لیکو ___

۴. ستاسو ښوونځی د لوبو میدان لري ___

۵. مور په ښوونځي کې ترانې لولو ___





## د لغتونو زېرمه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱. | دېوال | کور | کوټه | آسمان |
| ۲. | رسم | انګور | کتابچه | رنګې |
| ۳. | قلم | باغ | کاغذ | رنګ |
| ۴. | کتاب | مجله | غر | کتابتون |
| ۵. | انار | مېوه | منه | خط کش |
| ۶. | دقیقه | موټر | ثانیه | ساعت |







د دویم متن بیا لوستل



غوږ نیول او خبرې کول

ذهني وده: خپلو کړو وړو ته پام کول











نوښتي لیکنه

ولې موږ باید خپلو کړو وړو ته پام وکړو؟

موږ خپلو کړو وړو ته ځکه پام کوو چې نور راسره په تکلیف نه شي.

| | |
|---|---|
| لوبې | ______ |
| پام | ______ |
| خوندي | ______ |
| بریالي | ______ |





د لومړي او دویم متن بیا لوستل





## کلمې او جملې



**الف**

| مفرد | جمع |
|---|---|
| کتابچه | کتابونه |
| کتاب | هلکان |
| هلک | کتابچې |

**ب**

۱. د خپلو ټولګیوالو درناوی کوو ___.
۲. د څو ټولګیوالو نومونه پېژنئ ___؟
۳. ولې د ټولګیوالو درناوی کوو ___
۴. د ټولګیوالو د حال احوال پوښتنه کوو ___
۵. پرون ولې ټولګۍ ته نه وې راغلی ___

**ج**

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱. | دېوال | کور | کوټه | آسمان |
| ۲. | رسم | انګور | کتابچه | رنګي |
| ۳. | قلم | باغ | کاغذ | رنګ |
| ۴. | کتاب | مجله | غر | کتابتون |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل











## املا




توري او کلمې


|  |  |  |  |  |  |
|---|---|---|---|---|---|
| ف | ق | ک | گ | ل | م |
| فیل مرغه | قلم | کوتره | گل | لمن | مرغه |
| معارف | برق | موږک | چرگ | فیل | سلام |


اغزن بوټي — بیړه — وژغوره


## ښه ملګري

په ځنګله کې فیل مرغه، کوتره او موږک ملګري وو. یوه ورځ د فیل مرغي بچی په اغزن بوټي کې بند شو.



کوتره په بیړه موږک ته ورغله. ورته ویې ویل: د فیل مرغي بچی په اغزن بوټي کې نښتی دی. چرګې راته ویلي وو: «موږک په غاښونو بوټي پرې کولای شي.» مرسته ورسره وکړه. موږک وویل: ما هغه ځای ته یوسه. کوترې موږک پر شا کېناوه او والوته. موږک اغزن بوټی په غاښونو پرې کړ. د فیل مرغي بچی یې وژغوره. فیل مرغه چې خبره شوه، ویې ویل: ډېره مننه. تاسې زما ښه ملګري یئ.





## کلمې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱. | خوشحال | مېنه / بوټي | ۴. | هوايي | ډګر / مېنه |
| ۲. | شين | ډنډ / ورځ | ۵. | توره | جوار / تخته |
| ۳. | جلال | کار / آباد | ۶. | فيل | چرګ / مرغه |





## د لغتونو زېرمه


غټ خټکی


غټ انار


جګ هلک


اوږد خط کش


پنډ کتاب


ټيټ هلک


کوچنی خټکی


لنډ خط کش


نری کتاب


کوچنی انار





## د لومړي متن بيا لوستل



## توري او کلمې



| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نارنج | ګاونډیان | لمن | لمونځ | سالون | ن |
| شکوڼ | ژوبڼ | منه | ښکه | ښ | ڼ |



کاغۍ ستومانه ګاونډیان



# ښه ګاونډی



په یوه ځنګله کې یوه کوتره او یوه مرغۍ اوسېدلې. یوې کاغۍ د دوی کورونو ته نژدې کور جوړاوه. هغه ستړې او ستومانه وه. د کوترې او مرغۍ ورپام شو. هغوی د مرستې لپاره ورغلې.

کوترې ورته وویل:

کاغۍ خورې! مور به مې ویل:

«له ګاونډیانو سره مرسته ثواب لري.» مورې ستا مرستې ته راغلې یو. کوترې ورته خاشې او خلې راوړل او مرغۍ ورسره ځاله جوړوله. د دوی په مرسته ځاله ژر جوړه شوه. کاغۍ له کوترې او مرغۍ څخه مننه وکړه. هغې وویل: شکر خدایه چې ښې ګاونډیانې لرم.



## جملې



:

۱. کوترې کاغۍ ته وويل: مور در سره مرسته کوو.
۲. اتل سباوون ته وويل سبا لوبې کوو.
۳. اوربل زرلښتې ته وويل راځه چې درس ووايو.
۴. د ډېوې دغه مېوې خوښې دي منې او انګور.
۵. زبير وويل السلام عليکم و رحمت الله و برکاته! درنو مشرانو.
۶. سپوږمۍ ګلالۍ ته وويل راځه چې ښوونځي ته ولاړې شو.



## د لغتونو زيرمه



| الف | ب |
| --- | --- |
| تور | شپه |
| ژړا | ناروغ |
| خپه | خوشحاله |
| روغ | خندا |
| ورځ | سپين |



د دويم متن بيا لوستل










غوږ نیول او خبرې کول

ذهني وده: د خپلې حافظې کارول







نوښتي لیکنه

جمیلې او احمد غوښتل چې د الفبې د تورو غږونه تکرار کړي.

د جمیلې د ټولو تورو غږونه په یاد وو، خو احمد د ځینو تورو غږونه هېر کړي وو.

احمد د الفبې د تورو غږونه زده کړل.

| |
|---|
| پیل |
| کوښښ |
| خوشحاله |




د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې

### الف

| | | |
|---|---|---|
| ۱. | مزار | غر / شریف |
| ۲. | سپین | غر / مالته |
| ۳. | سور | اوبه / لنډۍ |
| ۴. | جلال | آباد / سیند |



### ب



۱. زده کوونکو وویل: موږ سره ملګري یو.
۲. کوتره موږک ته ورغله ورته یې وویل
۳. حمید خوشحال ته وویل سبا مېلې ته ځو.
۴. احمد ما ته وویل کورته ولاړ شه.

### ج

| الف | ب |
|---|---|
| غټ | شتمن |
| رڼا | خوشحاله |
| بې وزله | تیاره |
| خپه | وړوکی |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا






## توري او کلمې

| و | ه | ه | ي |
| --- | --- | --- | --- |
| ورځ | روغه | هېواد | ملګري |
| ناروغۍ | زړه | تهمینه | کینه |



نسخه کینه موسکا



# یو بل منل

کاغۍ ناروغه وه. فیل مرغ ته ورغله. ورته ویې ویل:

همېشه مې زړه خپه وي. ګاونډۍ بلبله مې بده ایسي چې ویې وینم، زړه مې خپه شي. نسخه راکړه چې په درملتون کې درمل واخلم. ګوندې روغه شم. فیل مرغ ورته وویل:

«ستا د ناروغۍ درمل له ما سره دي. کینه ساتل د ناروغۍ سبب کېږي. له زړه څخه دې د بلبلې کینه وباسه!»



بله ورځ کاغۍ بلبلې ته په موسکا سلام وکړ. بلبلې یې سلام واخیست او خوږې نغمې یې ورته وغږولې. د کاغۍ زړه باغ باغ شو. هغه خوشحاله او رکه روغه شوه.




## کلمې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| .۱ | فیل مرغ | فیل | باغ | مرغ |
| .۲ | | تور | پېکۍ | ستورې |
| .۳ | | نېک | خوښ | بخت |
| .۴ | | کورنۍ | دنده | ټولګی |
| .۵ | | نېک | غر | عمل |




## د لغتونو زېرمه

| الف | ب |
|---|---|
| همېشه | دوا |
| درمل | ښایسته |
| ښکلی | همسایه |
| ګاونډی | تل |




## د لومړي متن بیا لوستل




## توري او کلمې

| ي | ی | ې | ئ |
|---|---|---|---|
| کوترې | ښکلی | سپوږمۍ | ولیکئ |
| پښې | بچی | هیلۍ | ولولئ |




هیلۍ  ډوبېږي  مننه

# نېکي



مازدیگر باران شوی و. کوتره د ډنډ پر غاړه ولاړه وه. د موږک بچی راغی چې اوبه وڅښي. پښې یې وښوېدې او اوبو ته ولوېد. کوترې چې ولید، ژر والوته. هیلۍ ته یې ځان ورساوه. ورته ویې ویل: هله چې د موږک بچی په اوبو کې ډوبېږي.

هیلۍ په منډه راغله. د موږک بچی یې راوایست. بیا یې موږک ته کیسه وکړه چې کوترې راته وویل: «هله چې د موږک بچی په اوبو کې ډوبېږي.» زه ورسره لاړم او ستا بچی مې له اوبو څخه راوایست. موږک له هیلۍ او کوترې څخه مننه وکړه.



## جملې



۱. کاغۍ فیل مرغ ته وویل: همېشه مې زړه خپه وي.

۲. کوترۍ هیلۍ ته وویل د مورک بچي ډوبېږي.

۳. سپوږمۍ مریم ته وویل د بڼ ګلان مه شکوه.

۴. ابراهیم ادریس ته وویل السلام علیکم و رحمة الله و برکاتهُ.

۵. ښوونکي وویل د مور او پلار درناوی کوئ.

۶. د زلمي د قلمونو رنګونه دا دي تور، شین او سور.

:



## د لغتونو زېرمه



| الف | ب |
| --- | --- |
| باران | ګِلم |
| سپېڅلی | قوي |
| اوړی | دوبی |
| پیاوړی | پاک |
| تغر | اورښت |



د دویم متن بیا لوستل







## غوږ نیول او خبرې کول

**ذهني وده: په یوه وخت کې د څو کارونو ترسره کول**






## نوښتي لیکنه

جمیله او احمد متن لولي او هغه کلمې چې د (و) او (هـ) توري لري په نښه کوي.

| کوښښ |
|---|
| کلمې |
| خوشحاله |

---

---

---

د درس په پای کې به دوی د متن ټولې هغه کلمې چې د (و) او (هـ) توري لري، په نښه کړي.




## د لومړي او دویم متن بیا لوستل




## کلمې او جملې



الف

۱. سپین بام غر
۲. توشک ډگر هوايي
۳. جلال سیند آباد

ب

۱. ويې ويل: ډېره مننه تا او هیلۍ زما بچي وژغوره.
۲. کوترې هیلۍ ته وويل هله چې د موږک بچی ډوبېږي.

ج

| الف | ب |
|---|---|
| سمسور | ناپاک |
| دود | رواج |
| ناولی | شین |




## د لومړي او دويم متن بیا لوستل







## املا



توري او کلمې



| ت | ټ | ط | ث | س | ص | ز |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ترافیک | ټال | طاهر | ثواب | سویه | صابر | زرک |
| وخت | موټر | وطن | وارث | رسېدل | ناصر | تېز |



مېله ترافیکي نښې اوسپنې



# بې احتیاطي



په ځنګله کې حیواناتو مېله جوړه کړې وه. پیشو په ځان جوړولو ډېر وخت تېر کړ. سویې پیشو ته وویل:
پیشو! ملګري وايي چې ژر کوه، ناوخته شو. پیشو ځواب ورکړ: غم مه کوه! اوس به مو د سترګو په رپ کې ورسوم.
پیشو موټر چالان کړ، خو ډېر تېز یې چلاوه.
سویې په وارخطايۍ ورته وویل: پیشو! ترافیکي نښو ته پام کوه. باید موټر ورو وچلوې.
پیشو موټر نور هم تېز کړ. موټر ناڅاپه له اوسپنې څخه جوړې شوې لوحې سره وجنګېده. پر لوحه لیکل شوي وو:
«له نه رسېدو څخه، وروسته رسېدل ښه دي.»




## کلمې


سپین غر


______


______


______


______


______


______


______




## د لغتونو زېرمه

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱. تور | سپین | ۶. اوړی | ژمی |
| ۲. خپه | ______ | ۷. چاغ | ______ |
| ۳. نېکي | ______ | ۸. تود | ______ |
| ۴. وچ | ______ | ۹. خوږ | ______ |
| ۵. ژړا | ______ | ۱۰. دوستي | ______ |




## د لومړي متن بیا لوستل



## توري او کلمې



| ذ | ظ | ض | پ | ف | ح | ه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ذاکر | ظريف | ضابط | پخلا | فريده | حج | پوهه |
| کاغذ | حافظ | فرض | توپ | لطيف | صالح | هندوانه |



ډېره ودان مروره



# سوله



جنګ جګړه چې نه وي
ژوند به لکه ګل وي
پوهه به ډېره وي
ښار، ښار به ودان وي
خلک د وطن به
سولې سولې راشه
مه شې مروره

زړونه به مو ښه وي
سوله به اوبه وي
ورکه به تياره وي
کلي به مو شنه وي
ټول سره خواږه وي
کټ کټ په خندا شه
مونږ سره پخلا شه



## جملې



۱. سوبې په وارخطایۍ پیشو ته وویل: ترافیکي نښو ته پام کوه.

۲. مریم زرلښتې ته وویل سپینه کوتره د سولې نښه ده.

۳. په دې کتاب کې د دې مرغانو انځورونه دي لکه کوتره او طوطي.

۴. دا کسان د ډېر درناوي وړ دي لکه مور، پلار او نور مشران.

۵. اسماعیل ابراهیم ته وویل راځه چې له پلار سره مرسته وکړو.



## د لغتونو زېرمه



| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱. پوهه | ناپوهي | ۶. ودان | وران |
| ۲. تکړه | ______ | ۷. ورک | ______ |
| ۳. خواږه | ______ | ۸. دوست | ______ |
| ۴. سوله | ______ | ۹. ښمن | ______ |
| ۵. مروره | ______ | ۱۰. لوړ | ______ |



د دویم متن بیا لوستل







غوږ نیول او خبرې کول

ذهني وده: د معلوماتو سم تنظیمول











نوښتي لیکنه



جمیلې او شکیلا غوښتل چې د اختر لپاره چمتووالی ونیسي.

هغوی د یو بل په مرسته لومړی د اړتیا وړ شیانو لېست جوړ کړ.

| | |
|---|---|
| مېوه | ________________ |
| دوکان | ________________ |
| پیسې | ________________ |



د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې



الف






ب :

۱. ښوونکي وویل: تل د مشرانو درناوی کوئ.

۲. زرغونې وویل تاسې ښه زده کوونکي یاست.

چې په ټولګي کې یو له بل سره مرسته کوئ.

۳. مور مې راته وویل خپل درسونه ووایه.



ج

| الف | ب |
| --- | --- |
| خوږ | لوند |
| پخلا | کرکه |
| مینه | تریخ |
| وچ | مرور |

## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا






توري


| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ا | آ | ب | پ | ت | ټ | ث | ج | چ |
| ح | خ | څ | ځ | ر | ف | ق | ک | ګ |
| ل | م | ن | ڼ | د | ډ | ذ | | |


نوبت احتیاط امانت


# کتابتون

څنګه د کتابتون ادبونه وپېژنو؟

څوک چې غواړي معلومات يې زيات شي، کتابتون ته ځي. له کتابتون څخه هر څوک ګټه اخيستلای شي. کتابتون ځينې ادبونه هم لري. کله چې کتابتون ته ځو، بايد:



- نوبت مراعات کړو،
- که خبرې کوو، په ټيټ غږ يې وکړو،
- د کتاب پاڼې په احتياط واړوو،
- په کتاب کې خط ونه کړو،
- د کتاب مهم ټکي په کتابچه کې وليکو،
- امانت اخيستل شوی کتاب بېرته وسپارو،
- کتاب بېرته په خپل ځای کې کېږدو.

ګرانو زده کوونکو! همدا د کتابتون ادبونه دي.



## کلمې او جملې



| | | | |
|---|---|---|---|
| کتابونه | يخچال | کتابچې | قلمونه |
| زده کوونکي | ښوونکي | ونه | تولګيوال |
| کورونه | کوټې | دېوالونه | انګور |

۱. ډېوه کور ته ولاړه ــــ .

۲. چېرته ځې ــــ ؟

۳. زه زده کړه کوم ــــ

۴. له پلار سره مرسته کوم ــــ

۵. نوم دې څه شی دی ــــ

۶. کور مو چېرته دی ــــ



## د لغتونو زېرمه





| الف | ب |
|---|---|
| تخته | کتابتون |
| توپ | زده کوونکی |
| اذان | د لوبو میدان |
| کتاب | جومات |
| ښوونکی | تباشیر |

## د لومړي متن بیا لوستل









تورې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ذ | ر | ړ | ز | ژ | ږ | و | هـ |
| ه | ي | ې | ی | ۍ | ئ | س | ش |
| ښ | ص | ض | ط | ظ | ع | غ | |



احساس غوره میدان



# د رسۍ کشول



په لوبه کې د ګډون پر وخت څه احساس کوئ؟

په ځنګله کې حیوانات راټول شوي وو. دوی د رسۍ کشولو لوبه پیلوله. دوی نه پوهېدل چې کوم حیوان په کومه ډله کې ونیسي.

سویې غږ وکړ: «غرنۍ وزه او سور لنډۍ دې یوه خوا شي. لېوه او ګېدړه دې بله خوا شي.» غوره شوي حیوانات میدان ته راووتل: شور او هیجان پیل شو. پړانګ وویل: «آفرین وزې، شاباس سور لنډیه!»

زمري وویل: «آفرین لېوه، آفرین ګیدړې!»

له ډېرې هڅې وروسته، لوبه غرنۍ وزې او سور لنډي وګټله. بالیونکې ډلې دوی ته مبارکي ورکړه.



## کلمې او جملې



| الف | ب |
|---|---|
| خوشحال | ښار |
| روغ | تون |
| هوايي | لښته |
| میدان | ډگر |
| زر | مېنه |



:

۱. احمد وویل: زه راځم.
۲. زما دا درې رنگونه خوښېږي شين، نارنجي او سور.
۳. محمود وویل زه درس لولم.
۴. ځینې ترافیکي نښې دا دي سور څراغ، شین څراغ او ژیړ څراغ.
۵. ښوونکي زده کوونکو ته وویل کتابونو ته وگورئ.
۶. حضرت محمد ﷺ فرمايي د علم زده کړه پر نر او ښځې فرض ده.



## د لغتونو زېرمه

| الف | ب |
|---|---|
| تور | تریخ |
| خام | ورځ |
| خوږ | رڼا |
| شپه | سپین |
| تیاره | پوخ |



د دویم متن بیا لوستل







## غوږ نیول او خبرې کول

ذهني وده: د حافظې کارول او په یوه وخت کې د څو کارونو تر سره کول






## نوښتي لیکنه

احمد د هغو میوو نومونه چې د دوی په کلي کې شته په شعر کې ویل.

جمیلې غوښتل له هغه سره همدا لوبه ترسره کړي.

| |
|---|
| تمرین |
| ناک |
| انار |
| منه |

---

---

---

---



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل

## کلمې او جملې

الف

| | | | |
|---|---|---|---|
| کتابونه | ګلونه | باغ | قلمونه |
| کورونه | زمریان | ونې | ګل |
| هېواد | دوکانونه | پنسلونه | ساعتونه |
| چرګان | ماهیان | مېزونه | ګروپ |





ب





۱. مور وویل: مشرانو ته درناوی کوه.

۲. احمد ناري کړې دلته راشه!
ډاکټر داسې لارښوونه وکړه
ناپاک خواړه مه خورئ!

۴. پلار زوی ته داسې نصیحت وکړ زویه د مشرانو خبره منه.

ج

| الف | ب |
|---|---|
| لوی | ژړا |
| کم | ورځ |
| خندا | کوچنی |
| شپه | زیات |

## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا








توری او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| تمیم | تبر | تورپېکی | ت |
| ستړی | ناست | لوستونه | |
| مکتب | مرسته | ساعت | |




تریو | پخلنځی | درناوی

## درناوی



تمیم کور ته راغی. بکسه یې د کوټې په منځ کې واچوله. اوربد وغځېد. تمنا وویل: ولې دې بکسه په خپل ځای نه ږدې؟

تمیم په تریو تندي وویل: په تا یې څه.

مور یې چې د دوی خبرې واورېدې، راغله. ویې ویل: تمیمه زویه! ولې په غوسه یې؟

تمیم وویل: زه وږی او ستړی له ښوونځي څخه راغلم. تمنا وایي چې ولې دې بکسه بې ځایه اچولې ده؟

مور یې وویل: زویه! چې وږی یې، ډوډۍ به درته راوړم. تمنا ښه درته وايي. هغه دې خور ده. خبره یې باید ومنې او درناوی یې وکړې.

تمیم له تمنا څخه بخښنه وغوښته.

## کلمې




| | |
|---|---|
| خوږ | خوږه |
| کوچنۍ | کوچنی |
| لایق | لایقه |
| وریږه | وراره |
| کشر | کشره |
| هوښیاره | هوښیار |

| کوچنی | کوچنۍ |
|---|---|
| ______ | ______ |
| ______ | ______ |
| ______ | ______ |
| ______ | ______ |
| ______ | ______ |




## د لغتونو زېرمه




۱. زه درس وایم.

۲. اتل او به څښي.

۳. حامد بازار ته ځي.

۴. سمون کورنۍ دنده لیکي.

۵. هغه سودا راوړي.

کلمې

| | |
|---|---|
| کتاب | اوسپنه |
| تیږه | ګېلاس |
| ونه | موټر |
| قلم | بوټ |
| پیسې | لرګی |

## د لومړي متن بیا لوستل





کلمې

| | | |
|---|---|---|
| بریالی | بریالی+ توب | بریالیتوب |
| هلک | هلک+ توب | هلکتوب |
| کوچنی | کوچنی+ توب | کوچنیتوب |
| زلمی | زلمی+توب | زلمیتوب |



ښوونځی | مرسته | دنده



## له کورنۍ سره مرسته



طیب په دریم او طوبا په دویم ټولګي کې ده. یوه ورځ دوی له ښوونځي څخه کور ته راغلل.

طیب طوبا ته وویل: پلار مې په باغچه کې کار کوي. زه به له پلار سره مرسته وکړم.

طوبا وویل: ښه ده. زه به هم له مور سره مرسته وکړم.

طیب له پلار سره د باغچې کار خلاص کړ. بیا دواړه کور ته راغلل.

ګوري چې طوبا او مور هم د کور کارونه سر ته رسولي دي.

پلار يې وویل: آفرین بچیانو! دا دی کارونه مو وختي خلاص کړل.

اوس به ډوډۍ وخورو. بیا به زه په درسونو کې درسره مرسته وکړم.



## جملې



| تېرمهال | اوس مهال |
| --- | --- |
| هغه ښوونکی و. | ۱. هغه ښوونکی دی. |
| ما ورزش وکړ. | ۲. زه ورزش کوم. |
| زبیر مور ته سلام واچاوه. | ۳. زبیر مور ته سلام اچوي. |
| هغه ډوډۍ وخوړه. | ۴. هغه ډوډۍ خوري. |
| زما شین قلم خوښېده. | ۵. زما شین قلم خوښېږي. |
| ده کتاب ولوست. | ۶. دی کتاب لولي. |



## د لغتونو زېرمه



۱. اتل چای څښي.

۲. ځانګه کورنۍ دنده لیکي.

۳. زه بازار ته ځم.

۴. حامد مېوه خوري.

۵. سباوون لامبو وهي.

**کلمې**

| | |
| --- | --- |
| بوټ | پیاله |
| قلم | تبر |
| ونه | موټر |
| انار | غر |
| سیند | سړک |



د دویم متن بیا لوستل








غوږ نيول او خبرې کول



د احساساتو اداره کول: د احساساتو پېژندل











نوښتي ليکنه

جميله پرون ډېره خوشحاله وه.

هغې له خپلې ملګرې شکيلا سره لوبې کولې.

شکيلا خپه وه، ځکه چې په کورنۍ دنده نه پوهېده.

| | |
|---|---|
| وياړ | |
| ستونزې | |
| وارخطا | |
| مرسته | |




د لومړي او دويم متن بيا لوستل




## کلمې او جملې

الف




| | |
|---|---|
| کشر | کشره |
| مديره | مدير |
| زوړ | زړه |
| ځوانه | ځوان |
| خوريې | خورځه |
| هوښيار | هوښياره |

| کشر | کشره |
|---|---|
| ____ | ____ |
| ____ | ____ |
| ____ | ____ |
| ____ | ____ |
| ____ | ____ |

ب

۱. زه اوبه څښم.
۲. زبير وني ته خېژي.
۳. هوسۍ فيرني خوري.
۴. سپوږمۍ مخمينځي.

کلمې

| | |
|---|---|
| بام | پياله |
| مېوه | زينه |
| کاشوغه | درس |
| کاغذ | اوبه |

ج

۱. زمرى ښوونځي ته ځي. — زمرى ښوونځي ته ولاړ.
۲. زما شين قلم خوښېږي. — زما شين قلم خوښېده.
۳. زبير مور ته سلام اچوي. — زبير مور ته سلام واچاوه.
۴. ملالۍ مور ته درناوى کوي. — ملالۍ مور ته درناوى وکړ.




## د لومړي او دويم متن بيا لوستل







## املا


توري او کلمې


| | | | |
|---|---|---|---|
| طالب | طاهره | طاهر | ط |
| سطل | مطلب | لطیف | |
| خیاط | ضابط | وطن | |


اسوېلي خوندوره شتمنه


## کورنی اقتصاد



طالع ګل په خولو لوند کوټې ته راغی. سوړ اسوېلي یې وایست. طیبې ورته وویل: سړیه! ولې خپه یې؟ طالع ګل وویل: نوم مې طالع ګل دی، خو طالع نه لرم. ډېر کار کوم، خو ژوند مو ښه نه شو. طیبې وویل: له یوه لاسه ټک نه خېژي. پس له دې به زه هم درسره مرسته کوم. زه به خوندوره حلوا پخوم. ته یې په بازار کې خرڅوه. غږ به داسې کوې: واخلئ! واخلئ! خوندوره حلوا واخلئ! وروسته له دې به طیبې خوږه حلوا پخوله. طالع ګل به سهار وختي بازار ته وړله. همدا وو چې د طیبې له برکته غریبه کورنۍ شتمنه شوه.

## کلمې


خوشحاله















| | | | |
|---|---|---|---|
| خوشحاله | خپه | ستومانه | غوسه |
| ولاړ | روانه | ژړا | خندا |



## د لغتونو زېرمه



۱. دا تیږه توره ده.

۲. هوسۍ په درس کې کوښښ کوي.

۳. زمرى غښتلى ماشوم دی.

۴. سپوږمۍ په کوټه کې لمونځ کوي.

۵. زما ټولګی ښایسته دی.

**کلمې**

| | |
|---|---|
| تخته | ډبره |
| زیار | منډه |
| زوړ | قوي |
| خونه | اوبه |
| ښکلی | بدرنګه |



## د لومړي متن بیا لوستل






کلمې

| | | |
|---|---|---|
| مشر | مشر+توب | مشرتوب |
| ساده | ساده+توب | ساده توب |
| ماشوم | ماشوم+توب | ماشومتوب |
| مېړنی | مېړن+توب | مېړنتوب |




باغچه | اندېښنه | مشوره

## مور



د پسرلي ښکلی موسم و.
یوه ورځ طاهر او طاهره په خپله شنه باغچه کې ناست وو.
مور یې له طاهرې سره سبق وایه.
طاهر کتابچه او قلم په لاس، خپه ناست و.
مور یې ورته وویل: زوی جانه! ولې داسې خپه ښکارې؟
طاهر سر وخوځاوه او ویې ویل:
مورې! پرون مورې ته ښوونکي وویل: «تاسې د مور په هکله یو څه ولیکئ.»
مور یې په خندا وویل: زویه! اندېښنه مه کوه. زه او خور به دې درسره مرسته وکړو.
په دې خبرې سره د طاهر تندی وغوړېد او خوشحاله شو. بیا یې د مور او خور په مشوره خوږه ترانه ولیکله.



## جملې



| اوس | تېرمهال |
|---|---|
| ۱. زه کور ته ځم. | الف. ما ډوډۍ وخوړله. |
| ۲. زه ډوډۍ خورم. | ب. هغه خوښ و. |
| ۳. سمسور له ما سره مرسته کوي. | ج. ما درس ولوست. |
| ۴. هغه خوښ دی. | د. زه کورته ولاړم. |
| ۵. زه د مور او پلار درناوی کوم. | ح. ما د مور او پلار درناوی وکړ. |
| ۶. زه تږی یم. | و. زه تږی وم. |
| ۷. زه درس لولم. | ز. سمسور له ما سره مرسته وکړه. |



## د لغتونو زېرمه



۱. زده کوونکي ښوونځي ته ځي.

۲. زه مېوه خورم.

۳. عطر ور ځخه جوړېږي.

۴. زه لامبو وهم.

۵. درمل ورځخه جوړېږي.

**کلمې**

| | |
|---|---|
| زده کړې | لرگی |
| تیږه | انگور |
| گلان | خاوره |
| سرک | سیند |
| شیشه | بوټي |



د دویم متن بیا لوستل










## غوږ نیول او خبرې کول

د خپلو احساساتو اداره کول: تاسو څه احساس کوئ؟








## نوښتي ليکنه

احمد وارخطا و. په هغه ناوخته شوې وه.

| |
|---|
| بايسکل |
| احتياط |
| د ښوونځي زنګ |
| تصميم |

احمد په وخت ښوونځي ته راورسېد.

هغه خوشحاله و.




## د لومړي او دويم متن بيا لوستل



## کلمې او جملې

الف






____ ____ خپه هلک ____






____ ____ ____ ____

خوشحاله خپه ستومانه حیرانه

خندانه ولاړ غوسه وېرېدلي

ب

۱. زه وږی یم.
۲. رڼا لمونځ کوي.
۳. میرویس بازار ته ځي.
۴. زرلښته درس لولي.

کلمې

| | |
|---|---|
| ډوډۍ | څمکه |
| کور | آسمان |
| منگۍ | موټر |
| کتاب | چای |

ج

| | |
|---|---|
| ۱. زه کورته ځم. | الف. ما ډوډۍ وخوړله. |
| ۲. زه ډوډۍ خورم. | ب. زه کورته ولاړم. |
| ۳. زه درس لولم. | ج. احمد تږی و. |
| ۴. احمد تږی دی. | د. ما درس ولوست. |




## د لومړي او دويم متن بیا لوستل







## املا


توري او کلمې


| | | | |
|---|---|---|---|
| تمیم | لوستل | میاشت | ت |
| توت | طاووس | سطل | ط |
| خیاط | طاهر | وطن | |


کرښې | غوسه | خوندي


# زغم



کوټې ته ورننوتم. ګورم چې وړه خور مې، طاهره زما پر کتابچه کرښې باسي. په غوسه شوم. غاښونه مې وچیچل. نژدې وو چې طاهره ووهم، خو مور مې راغله. راته ویې ویل: څه خبره ده چې غوسه یې؟

مور ته مې وویل: مورې! طاهرې مې کتابچه خط خط کړې ده. مور مې یو ګیلاس اوبه راکړې، ویې ویل: اوبه وڅښه، غوسه به دې سړه شي. اوبه مې وڅښلې، فکر مې آرام شو. مور مې وویل: ګرانه زویه! طاهره خو وړه نجلۍ ده، نه پوهېږي. بیا به داسې نه کوي، خو ته دې هم خپل کتابونه او کتابچې په خوندي ځای کې ږده.














## کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| ______ | خوشحاله | ______ | ______ |
| ______ | ______ | ______ | ______ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| خوشحاله | سترې | خپه | چاغ |
| ډنګره | ټيټ | جګه | زَړه |

## د لغتونو زېرمه

کلمې

| | |
|---|---|
| ګلالۍ | تکړه |
| هوښيار | ښکلې |
| کومک | مينه |
| لوستل | تمرين |
| ښايسته | لوی |

۱. زرمينه لايقه نجلۍ ده.

۲. فهيم ځيرک هلک دی.

۳. زه له مور سره مرسته کوم.

۴. زه د املا مشق کوم.

۵. زمونږ کور ښکلی دی.

## د لومړي متن بيا لوستل



## کلمې



| | | |
|---|---|---|
| تور | تور+والی | توروالی |
| سپين | سپين+والی | سپينوالی |
| ښه | ښه+والی | ښه والی |
| زوړ | زوړ+والی | زوړوالی |



مينه — رښتيا — ملتيا



# پلار



پر سر مو لاس تېروي — راته موسکا کوي
مونږ سره مينه مينه — پلار په رښتيا کوي
راته کتاب کتابچې — قلم، قلم راوړي
نور ډېر شيان ورسره — رقم رقم راوړي
د کار خبرې راته — صفا صفا کوي
باغ ته مو هم بيايي — چې په کې ولوبېږو
چې خوشحالۍ وکړو — چې کټ کټ وخندېږو
پلار وي راګډ په لوبو — زمونږ ملتيا کوي



## جملې



| اوس | تېرمهال |
|---|---|
| ۱. زه لیک لیکم. | الف. خيبر پرون ښوونځي ته لاړ. |
| ۲. زه ډوډۍ خورم. | ب. څلاند کورنۍ دنده تر سره کړه. |
| ۳. خيبر نن ښوونځي ته ځي. | ج. محمد خپل کتابونه ښه ساتل. |
| ۴. پلوشه درس لولي. | د. ما له خپلې خور سره مرسته وکړه. |
| ۵. څلاند کورنۍ دنده تر سره کوي. | هـ. ما لیک و لیکه. |
| ۶. محمد خپل کتابونه ښه ساتي. | و. ما کتاب ولوست. |
| ۷. زه له خپلې خور سره مرسته کوم. | ز. ما ډوډۍ وخوړله. |
| ۸. زه کتاب لولم. | ک. پلوشې درس ولوست. |



## د لغتونو زېرمه

۱. زه بې ځایه لګښت نه کوم.

۲. زه شین پړونی لرم.

۳. زما پلار بزګر دی.

۴. میرویس ښوونکی دی.

۵. زه خوشحاله یم.



کلمې

| | |
|---|---|
| کار | مصرف |
| ټیکری | خولۍ |
| ختګر | دهقان |
| معلم | ډاکټر |
| خپه | خوښ |



## د متن بیا لوستل






غوږ نیول او خبرې کول

## د خپلو احساساتو اداره کول: د بدو احساساتو اداره کول





نوښتي لیکنه


جمیله ډېره په غوسه ده.

| | |
|---|---|
| ژوره ساه | ________________________ |
| ځای | ________________________ |
| مور | ________________________ |
| کورنۍ | ________________________ |
| آرامه | ________________________ |


د لومړي او دویم متن بیا لوستل




## کلمې او جملې

### الف



______ ______ ______ ______

______ ______ ______ ______

| | | | |
|---|---|---|---|
| خوشحاله | ستړی | خپه | چاغ |
| ډنګره | ټيټ | جګه | زړه |

### ب

۱. زرمينه لايقه نجلۍ ده.

۲. فهيم ځيرک هلک دی.

۳. زه له مور سره مرسته کوم.

۴. زه د املا مشق کوم.

۵. زموږ کور ښکلی دی.

**کلمې**

| | |
|---|---|
| ګلالی | تکړه |
| هوښيار | ښکلی |
| کومک | مينه |
| لوستل | تمرين |
| ښايسته | لوی |

### ج

۱. زه ليک ليکم.

۲. زه ډوډۍ خورم.

۳. خيبر ښوونځي ته ځي.

۴. پلوشه درس لولي.

الف. ما ډوډۍ وخوړله.

ب. ما ليک وليکه.

ج. پلوشې درس ولوست.

د. خيبر ښوونځي ته ولاړ.



## د لومړي او دويم متن بيا لوستل









## املا





توری او کلمې

| | | |
|---|---|---|
| ثواب | ثُرَیا | کَلثوم |
| کثافات | عُثمان | کوثر |
| غیاث | حدیثه | وارث |

ث



سیمه سمسوره ورزش



## سمسورتیا



ښنگه کولای شو خپله سیمه سمسوره کړو؟ ګرانو زده کوونکو! چېرته چې ونې او بوټي ډېر وي، سیمه ښکلې ښکاري. هوا یې تازه وي. بارانونه په کې ډېر او دوړې په کې کمې وي. خلک ډېر نه ناروغه کېږي. سمسور ځایونه د مطالعې، ورزش او تفریح لپاره ښه وي.

نو باید:

- ونې او ګلان وکرو،
- د وچو ونو پر ځای، نوي نیالګي کېنوو،
- ونو او ګلانو ته په وخت اوبه ورکړو،
- د ونو او ګلانو له ماتولو ځخه ډډه وکړو،
- په سمسورو ځایونو کې کثافات وانه چوو. ګورئ زده کوونکو! که پورتني ټکي په پام کې ونیسو، سیمه به مو سمسوره شي.



## کلمې







| | |
|---|---|
| هوښیار هلکان | هوښیارې نجونې |
| روان هلکان | روانې نجونې |
| مهربانه پلرونه | مهربانې میندې |
| لایق هلکان | لایقې نجونې |
| ښه هلکان | ښې نجونې |
| تکړه هلکان | تکړه نجونې |

| ښه هلکان | ښې نجونې |
|---|---|
| ______ | ______ |
| ______ | ______ |
| ______ | ______ |
| ______ | ______ |
| ______ | ______ |

## د لغتونو زېرمه

| | | | |
|---|---|---|---|
| انار | وزه | پیاز | رومیان |
| غوا | بېنډۍ | ناک | چرگه |
| کدو | انگور | پسه | منه |

| خاروي | سابه | مېوې |
|---|---|---|
| غوا | کدو | انار |
| ______ | ______ | ______ |
| ______ | ______ | ______ |
| ______ | ______ | ______ |
| ______ | ______ | ______ |



## د لومړي متن بیا لوستل





## کلمې

| | | |
|---|---|---|
| ستر | ستر + ه | ستره |
| لوړ | لوړ+ه | لوړه |
| جگ | جگ+ه | جگه |
| ځیرک | ځیرک+ه | ځیرکه |



نعمت — زېرمې — کثافات



# د څښلو پاکې اوبه

گرانو زده کوونکو! اوبه د الله ﷻ لوی نعمت دی. له اوبو پرته ژوند نه کېږي. د څښلو پاکې اوبه په څاگانو، کاریزونو، چینو او نلونو کې وي. ناپاکې اوبه انسان ناروغه کوي، نو باید:



- د اوبو د زېرمو شاوخوا پاکه وساتو،
- د اوبو نل خلاص پرې نه ږدو،
- د اوبو د زېرمو په شاوخوا کې کثافات وانه چوو،
- د اوبو له څاه او نل سره نژدې حیوانات پرې نه ږدو،
- کناراب باید د اوبو له څاه څخه لرې جوړ شي،
- د اوبو زېرمې باید پاکې وساتو. د اوبو د لوښو سرونه پټ وساتو. دې سره به د ناروغیو مخه ونیول شي.



## کلمې



| کلمه | مثبت امریه | منفي امریه |
|---|---|---|
| تلل | ځه! | مه ځه! |
| خوړل | وخوره! | |
| خندل | | مه خانده! |



## د لغتونو زېرمه



پلار    پاکه هوا    مور    تخته
شنه ځایونه    خور    غرونه    دښتې
ورور    زده کوونکی    معلم    تباشیر

| کورنۍ | ښوونځی | چاپېریال |
|---|---|---|
| پلار | معلم | شنه ځایونه |
| ______ | ______ | ______ |
| ______ | ______ | ______ |
| ______ | ______ | ______ |



د دويم متن بیا لوستل







غوږ نیول او خبرې کول

## ټولنیز مثبت مهارتونه: د خلکو د احساساتو پېژندل






نوښتي لیکنه



**د نورو خلکو پر احساساتو پوهېدل څه ارزښت لري؟**

موږ باید د خلکو پر احساساتو ځانونه پوه کړو.

کله چې تاسو د خپل ملګري احساساتو ته پام نه کوئ، هغه څه احساس کوي؟

کله چې څوک ستاسو احساساتو ته پام نه کوي، نو څه احساس کوئ؟

| |
|---|
| پام کول |
| خپه |
| ناراحت |

دا ښه ده چې د نورو احساسات باید وپېژنو. دا کار له موږ سره مرسته کوي چې ښه ملګري ولرو.



د لومړي او دویم متن بیا لوستل





## کلمې او جملې



### الف

| | |
|---|---|
| واړه هلکان | وړې نجونې |
| جګ هلکان | جګې نجونې |
| خوشحاله هلکان | خوشحالې نجونې |
| زړور هلکان | زړورې نجونې |





| زړور هلکان | زړورې نجونې |
|---|---|
| ______ | ______ |
| ______ | ______ |
| ______ | ______ |

### ب

| کلمه | مثبت امریه | منفي امریه |
|---|---|---|
| لیکل | ولیکه! | مه لیکه! |
| راوړل | راوړه! | |
| ښنبل | | مه ښنبه! |

### ج

| | | |
|---|---|---|
| کمیس | ناک | کارغه |
| کوتره | مرغۍ | پتلون |
| خُرما | ډوډۍ | څادر |

| الوتونکی | کالي | خواړه |
|---|---|---|
| کوتره | کمیس | ناک |
| ______ | ______ | ______ |
| ______ | ______ | ______ |



## د لومړي او دويم متن بیا لوستل









## املا





توري او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| سپلابونه | سودا | پوستکی | س |
| اوسپنه | پلاستیک | احساس | |
| سیمه | انسان | نس | |



خوندي | میکروب | سره



## کثافات



کثافات څنګه خوندي کړو؟
پوهېږو چې په کثافاتو کې میکروبونه پیدا کېږي او انسان ناروغه کوي. ناروغ انسان کمزوری او خپه وي. که کثافات د چا د کور خوا ته واچوئ، غوسه به شي، نو ګورئ!

- کثافات په ټاکلي ځای کې واچوئ.
- د مېوو پوستکي او د ترکاریو پاتې شونې حیواناتو ته ورکولی شو. که یې ښخ کړو سره ورڅخه جوړېږي.
- کاغذونه، ښیښې، اوسپنه او پلاستیکي شیان له کثافاتو بېل کړئ. دا شیان خرڅېږي.
- کاغذونه ژمي ته وساتئ او په بخارۍ کې یې وسوځوئ.
- سودا په ټوکرینو کڅوړو کې راوړئ.

که همداسې وکړو، کثافات به کم او خوندي شي.

## کلمې


لوی هلکان















| | | | |
|---|---|---|---|
| لوی هلکان | غټ غوایان | برګې چرګې | ژیړ خټکی |
| سرې مڼې | برګ چرګان | وړې نجونې | غټې غواګانې |

## د لغتونو زېرمه

| | | | |
|---|---|---|---|
| پلار | ګلپي | پالک | کاهو |
| توشکې | دېوال | مور | کوټه |
| الماری | ورور | بېنډۍ | خور |

| د کورنۍ غړي | سابه | کور |
|---|---|---|
| پلار | ګلپي | الماری |
| | | |
| | | |
| | | |

## د لومړي متن بیا لوستل




## کلمې

| | | |
|---|---|---|
| ناروغ | ناروغ + ي | ناروغي |
| هوښيار | هوښيار + ي | هوښياري |
| ځيرک | ځيرک + ي | ځيرکي |
| ګلاب | ګلاب + ي | ګلابي |




تالنده | برېښنا | تندر

## باران

په باران کې څنګه ځان خوندي کړو؟



په باران کې مو کالي لندېږي او کېدای شي ناروغه شو. په تېز باران کې سېلاب راوځي.

کله کله له باران سره تالنده برېښنا هم وي.

تندر يا برېښنا پر ونو، ستنو، آنتنونو او لوړو ځايونو لوېږي. تندر د مرګ ژوبلې سبب ګرځي.

نو ګورئ! په باران کې چترۍ پر سر ونيسئ. که چترۍ نه وه، په خوندي ځای کې ودرېږئ.

په خوړونو او ژورو ځايونو کې مه ګرځئ.

پام کوئ! که تالنده برېښنا وي، تر ونو لاندې مه درېږئ.

د برق له ستنو او آنتنونو څخه لرې شئ.

دا ټکي مو د باران او برېښنا له خطر څخه ساتي.



## کلمې او جملې



| کلمه | مثبت امریه | منفي امریه |
| --- | --- | --- |
| راوړل | راوړئ! | مه راوړئ! |
| څښل | | مه څښئ! |
| خوړل | وخورئ! | |



## د لغتونو زېرمه



| | | | |
| --- | --- | --- | --- |
| توپ | پنسل | مېږه | وبکتې |
| قلم | مارکر | جال | گډ |
| وزه | اوښ | ببېت | تباشير |

| دلوبو وسايل | څاروي | د ليکلو څيزونه |
| --- | --- | --- |
| توپ | وزه | قلم |
| ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ |



## د دويم متن بيا لوستل







غوږ نیول او خبرې کول

ټولنیز مثبت مهارتونه: د خلکو د احساساتو په اړه وړاندوینه









نوښتي لیکنه

د خلکو د احساساتو په اړه وړاندوینه ولې مهمه ده؟
د دې لپاره چې له خلکو سره ښې اړیکې ټینګې کړو.
څنګه کولی شئ د خلکو پر احساساتو ځانونه پوه کړئ؟

| |
|---|
| خبرې |
| پوهېدل |
| ټولګیوال |
| ځواب |

کله چې موږ د خلکو پر احساساتو پوه شو، نو له هغوی سره ښې اړیکې ټینګولی شو.



د لومړي او دویم متن بیا لوستل





## کلمې

الف





چاغ هلکان | غټ غوایان | برګې چرګې | ژېړ خټکی
سرې مڼې | برګ چرګان | وړې نجونې | غټې غواګانې

ب

| کلمه | مثبت امریه | منفي امریه |
| --- | --- | --- |
| راوړل | راوړئ! | مه راوړئ! |
| څښل | وڅښئ! | |
| خوړل | ! | مه خورئ! |

ج

کرېکټ | پنسل | مېزه | رسۍ کشول
قلم | مارکر | توپ | زمرې
فیل | لېوه | واليبال | تباشير

| لوبې | ژوبڼ | د لیکلو څېزونه |
| --- | --- | --- |
| ــــــ | ــــــ | ــــــ |
| ــــــ | ــــــ | ــــــ |
| ــــــ | ــــــ | ــــــ |
| ــــــ | ــــــ | ــــــ |



## د لومړي او دويم متن بیا لوستل









## املا






توري او کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| ث | ثواب | وارث | کثافات |
| س | سیند | پسرلی | لاس |
| ص | صفا | نصیر | اخلاص |




صفايي | پام | اشر

# د ښار پاکوالی



څنګه کولای شو، ښار پاک وساتو؟ ښار زموږ ګډ کور دی. که د ښار صفايي ته پام ونه شي، په ناروغيو به اخته شو. د دې لپاره چې ښار صفا او ښکلی وساتو، باید:

- په خپلو کورونو او شاوخوا کې ښايسته نيالګي کېنوو،
- کثافات په ټاکلي ځای يا کثافت دانۍ کې واچوو،
- د ولاړو اوبو ډنډونه له منځه يوسو. په لښتيو، ويالو او سيندونو کې کثافات ونه غورځوو،
- د پاکوالي په اشر کې برخه واخلو. د خپلې سيمې صفا ساتل ثواب لري. ګرانو زده کوونکو! ښار زموږ ګډ کور دی. بايد پاک يې وساتو.

## کلمې


غټ هلکان















| | | | |
|---|---|---|---|
| غټ هلکان | واړه هلکان | ناستې نجونې | خوشحالې نجونې |
| ناست هلکان | وړې نجونې | خوشحال هلکان | غټې نجونې |



## د لغتونو زېرمه



| | | | |
|---|---|---|---|
| هندوانه | بوټي | آسونه | انګور |
| پسونه | الوچې | نیالګي | اوښان |
| چمنونه | غواګانې | شفتالو | ګلان |

| مېوې | حیوانات | سمسورتیا |
|---|---|---|
| شفتالو | پسونه | ګلان |
| ______ | ______ | ______ |
| ______ | ______ | ______ |
| ______ | ______ | ______ |



## د لومړي متن بیا لوستل





کلمې



| کلمه | کلمه + وال | کلمه |
| --- | --- | --- |
| نړۍ | نړۍ+وال | نړیوال |
| لیک | لیک+وال | لیکوال |
| هېواد | هېواد+وال | هېوادوال |
| کلي | کلي+وال | کلیوال |



بڼ　تلوسه　زرغونه



## د پسرلي ترانه



ځمکه تېره شوه، هوا ښه شوه
پسرلي وړمه خوره شوه
بلبل بیا سندرې وایي
بڼ، بېدیا نغمه نغمه شوه
نارنج ګل شو، انار ګل شو
غر او سمه رنګینه شوه
شاګردان مکتب ته درومي
د لیک لوست یې تلوسه شوه
د بزګر له کار او زیاره
وچه ځمکه زرغونه شوه.



## کلمې او جملې



| منفي امریه | مثبت امریه | کلمه |
|---|---|---|
| مه خاندئ! | وخاندئ! | خندل |
| مه ژاړئ! | | ژړل |
| | ویې لټوئ! | لټول |



## د لغتونو زېرمه



| | | | |
|---|---|---|---|
| سور | واسکټ | زرکه | سپین |
| لونګۍ | شین | کمیس | مرغۍ |
| کوتره | طوطي | تور | څادر |

| جامې | الوتونکي | رنګونه |
|---|---|---|
| کمیس | طوطي | سور |
| ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ |



## د دویم متن بیا لوستل








غوږ نیول او خبرې کول



ټولنیز مثبت مهارتونه: د خلکو احساساتو ته ځواب ویل

ماشومان څه ډول احساس لري او مور یې څه احساس کوي؟






نوښتي لیکنه

مورې باید د خلکو پر احساساتو ځانونه پوه کړو.
تېره ورځ چې زه ناوخته کور ته ورسېدم،
مور مې ډېره وارخطا وه.

| |
|---|
| مینه |
| فکر |
| ستونزې |
| لوبې |




د لومړي او دویم متن بیا لوستل




## کلمې



### الف

غټې هلکان



غټې هلکان    خپه هلکان    همزولي هلکان
همزولې نجونې    ورې نجونې    خوشحال هلکان
خوشحاله نجونې    خپه نجونې

### ب

| کلمه | کلمه+وال | کلمه |
|---|---|---|
| بڼ | بڼ+ وال | بڼوال |
| نرۍ | نرۍ+وال | نرۍوال |
| گډون | گډون+وال | گډونوال |

### ج

خط کش    قلم تراش    رنده    اره
قلم    پیاز    رومیان    چکش
بانجان    کتابچه    پنسل پاک    گندنه

| قرطاسیه | ترکاري | سابه |
|---|---|---|
| قلم تراش | اره | گندنه |
| ____ | ____ | ____ |
| ____ | ____ | ____ |
| ____ | ____ | ____ |
| ____ | ____ | ____ |




## د لومړي او دویم متن بیا لوستل





## املا







توري او کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| توریالی | تلاوت | ساتنه | ت |
| ساعت | ترانه | طالب | ط |
| مطالعه | ضابط | خیاط | |




باور    خپه    اندېښنه

## په خپل ځان باور




جاوېد نوی په لومړي ټولګي کې شامل شو. د دوی د کور او ښوونځي تر منځ لاره کږه وږه وه.

هغه خپه و چې ښوونځي ته به څنګه ځي. د جاوېد پلار صابر هغه په غېږ کې ونیوه.

ورته یې وویل: زویه! اندېښنه مه کوه. ورور به دې ښوونځي ته بیایي. جاوېد د پلار په خبره خوشحاله شو.

صابر خپل مشر زوی ته وویل: جاوېد ښوونځي ته بیایه او راوله یې. څو ورځې تېرې شوې. جاوېد پر لاره بلد شو او پر ځان یې باور پیدا شو. هغه خپل مشر ورور ته وویل: مننه وروره! زه نور په خپله ښوونځي ته تلای شم.



## کلمې



  

۱. واړه ______ ______

  

۲. ______ ______ ______

  

۳. ______ روان ______

| | |
|---|---|
| ولاړ | خپه |
| واړه | غټه |
| خوشحاله | غټ |
| ولاړې | روان |
| وړې | |

## د لغتونو زېرمه



۱. زه کوټې ته ځم.
۲. زه له خپلې خور سره مرسته کوم.
۳. امين له لارې ښخه ډبرې لرې کوي.
۴. پلوشه درس لولي.
۵. اتل ښايسته ماشوم دی.
۶. خانګه کور پاک ساتي.

کلمې

| | |
|---|---|
| خونې | آسمان |
| کومک | لار |
| غر | تيږې |
| سبق | لمر |
| ښکلی | مېز |
| خونه | ستورې |

## د لومړي متن بيا لوستل






## توري او کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| ث | ثور | کثافات | وارث |
| س | انسان | سهار | درس |
| ص | صابر | بصیره | خالص |




ککړتیا   غوځ   ټاکلي

# پاکه هوا

څنګه د هوا د ککړتیا مخه نیولای شو؟



هر څوک پاکې هوا ته اړتیا لري.
ککړه هوا انسان ناروغه کوي.
زموږ په هېواد کې ډېرو کسانو
ښکلي ځنګلونه غوځ کړل. د هوا
صفایۍ ته یې زیان ورساوه.

ګرانو زده کوونکو! د دې لپاره چې
په پاکه هوا کې ژوند وکړو، نو باید:

- ګلان او بوټي وکرو.
- ونې کېښوو او ښکلي باغونه جوړ کړو. د ونو او ګلانو ښه ساتنه وکړو. پلاستیکي او ربړي شیان ونه سوځوو.
- کثافات په ټاکلي ځای کې واچوو.
- شنې ونې، ځنګلونه او بوټي پرې نه کړو. نو راځئ! پورتنیو لارښوونو ته پام وکړو. د خپلې روغتیا لپاره د هوا د ککړتیا مخه ونیسو.



## کلمې





۱. برگ ____ ____





۲. ____ ____ ____





۳. ____ ____ ____



| | |
|---|---|
| ناستې | برگې |
| برگ | ولاړ |
| ناسته | روان |
| سور | ولاړې |
| روانې | |



## د لغتونو زېرمه

!

۱. ژر کور ته لاړ شه!

۲. د بدې خبرې مه کوه

۳. رښتیا وایه

۴. دروغ مه وایه

۵. د مشرانو درناوی وکړه



| | | |
|---|---|---|
| کشمالې | پسرلی | مرسل |
| شنبه | گلاب | اوړی |
| ژمی | پنجشنبه | رامبېل |
| دوشنبه | جمعه | منی |

**گلان**

کشمالې ____ ____ ____

**د اونۍ ورځې**

دوشنبه ____ ____ ____

**د کال فصلونه**

پسرلی ____ ____ ____


د دویم متن بیا لوستل









## غوږ نيول او خبرې کول

**د احساساتو اداره کول او ټولنيز مثبت مهارتونه: د يوه کار يا حالت په اړه د خلکو ډول ډول احساسات**






## نوښتي ليکنه

ځنګه کولی شئ د خپل ملګري پر احساساتو ځانونه پوه کړئ؟

موږ بايد د خلکو احساسات وپېژنو او مناسب چلند ورسره وکړو.

موږ بايد له خپلو ملګرو سره خبرې وکړو.

| |
|---|
| خوشحاله |
| خپه |
| پوهېدل |
| کوښښ |




## د لومړي او دويم متن بيا لوستل

## کلمې او جملې

### الف


وړې











ولاړ، خپه، واړه، غټه، خوشحاله، غټې، ولاړې، روان، وړې

### ب



۱. دلته راشه!
۲. شور مه کوه!
۳. رښتیا ووایه
۴. دروغ مه وایه
۵. د مشرانو درناوی وکړه

### ج

کشمالي، ممیز، پښې، لاسونه، چارمغز، رامبېل، سر، ګلاب، پِسته

| ګلان | وچې مېوې | د بدن غړي |
|---|---|---|
| کشمالي | بادام | سترګې |
| | | |
| | | |
| | | |

## د لومړي او دویم متن بیا لوستل








## املا










## تورې او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| زمری | وزه | باز | ز |
| ګازره | زږه | زرکه | |
| ترموز | پیاز | بزګر | |




کمزوری — صِحي — مناسب

# صِحي خواړه



یوه ورځ زرمینې خپل زوی کلینیک ته وړی و.

د هغې زوی ډېر کمزوری او ډنګر و.

زرمینې ډاکټرې ته وویل: ډاکټرې صاحبې! دا زوی مې ډېر کمزوری دی او تل ژاړي. ډاکټرې زرمینې ته وویل:

خورې! دې ماشوم ته دې صِحي او مناسب خواړه نه دي ورکړي.

زرمینې پوښتنه وکړه: صِحي او مناسب خواړه کوم دي؟

ډاکټرې وویل: خورې! ښه پوښتنه دې وکړه.

صِحي خواړه هغه دي چې پاک وي. بدن مو قوي کړي. له ناروغیو مو وساتي. ډاکټرې زیاته کړه: مور باید ډول ډول خواړه وخورو، لکه: شیدې، هګۍ، مېوې، سابه، لوبیا، نخود، غوښه او داسې نور.

زرمینې وویل: خیر یوسې! اوس پوه شوم.




## کلمې او جملې

۱. ایمل پاک خواړه خوري.
(هغه) پاک خواړه خوري.
۲. زه، ځلا او خیبر پاک خواړه خورو.
(    ) پاک خواړه خورو.
۳. سپوږمۍ او ځانګه روغتون ته ولاړې.
(    ) روغتون ته ولاړې.
۴. ښکلا ته یې درمل راوړل.
(    ) ته یې درمل راوړل.

**کلمې**

هغه
هغې
موږ
هغوی





## د لغتونو زېرمه

| الف | ب |
|---|---|
| تیره | شفاخانه |
| پرې | شین |
| جوړ | روغ |
| ښکلې | رسۍ |
| سمسور | ډېره |
| روغتون | ښایسته |




## د لومړي متن بیا لوستل




## کلمې او جملې

| | | |
|---|---|---|
| څم | زه + څم | زه څم |
| ځو | مور + ځو | مور ځو |
| خاندو | مور + خاندو | مور خاندو |
| ليکي | هغوی + ليکي | هغوی ليکي |




لوبه | مطالعه | دوړې

# د سترګو ساتنه



زلمي زمرک ته وويل: راځه چې په کمپيوټر کې لوبه وکړو.

هغوی يو ساعت لوبه وکړه. د دواړو سترګې سرې اوښتې وې. د زلمي مور وويل: ګرانو! لوبه بس کړئ. سترګې مو خرابوي. زمرک وويل: ترورې! ته رښتيا وايې. زما سترګې سوی کوي.

د زلمي مور يو کتاب ورکړ. ويې ويل: واخلئ! د کتاب دا ځای ولولئ. وروسته زلمي د کتاب هماغه برخه په لوړ غږ ولوستله: که ټلويزيون، کمپيوټر يا موبايل ته ډېر وخت وګورئ، سترګې مو خرابېږي. په لږه رڼا کې مطالعه مه کوئ. لمر ته مخامخ مه ګورئ. سترګې مو له دوړو وساتئ. که شيان ښه نه وينئ، د سترګو ډاکټر ته ورشئ.



## جملې



: ،

۱. د پستې ځنګلونه په دې ولایتونو کې دي: بدخشان، تخار، بغلان او سمنګان.

۲. زما د ورونو نومونه دا دي اتل خیبر شمشاد او حمید.

۳. زموږ دا مېوې خوښېږي لکه انار منې انګور او ختکې.

۴. موږ باید ډول ډول خواړه وخورو لکه شیدې هګۍ مېوې او لوبیا.

۵. د کامیابۍ لارې دا دي هڅه کوښښ تعلیم او مطالعه.



## د لغتونو زیرمه



| الف | ب |
|---|---|
| روغ | تیاره |
| لوړ | پاک |
| تود | تور |
| سپین | ټیټ |
| ناولی | رنځور |
| رڼا | سوړ |



د دویم متن بیا لوستل






غوږ نیول او خبرې کول

مثبت ټولنیز مهارتونه او د شخړو حلول: ښه ملګري





نوښتي لیکنه

احمد او راشد ښه ملګري دي.
دوی هره ورځ یو ځای لوبې کوي.

| |
|---|
| ناروغ |
| ښوونځي |
| مرسته |
| درس |

____________________________________________

____________________________________________

یوه ورځ راشد ناروغ و.

____________________________________________

احمد وارخطا و چې راشد به له درسونو وروسته پاتې شي.

____________________________________________

راشد احمد ته وویل: ته مې ډېر ښه ملګری یې.



د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې



**الف**

۱. احمد پاک خواړه خوري.
( هغه ) پاک خواړه خوري
۲. زه، ځلا او حامد پاک خواړه خورو.
(    ) پاک خواړه خورو.
۳. زهره او زرڅانګه روغتون ته ولاړې
(    ) روغتون ته ولاړې.
۴. رڼا ته درمل راوړي.
(    ) ته درمل راوړي.

کلمې
هغه
هغوی
موږ
هغې

**ب**

| | |
|---|---|
| جوړ | شفاخانه |
| ښکلی | شین |
| سمسور | روغ |
| تیره | ښایسته |
| روغتون | ډېره |

**ج**

۱. موږ درې ورونه یو: اتل، خیبر او شمشاد.
۲. زموږ دا میوې خوښېږي لکه انار منې او انګور.
۳. زما دا سابه ډېر خوښ دي لکه بېنډۍ پالک تور بانجان او کدو.

:  ،



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا






## توري او کلمې

**ذ**

| | | |
|---|---|---|
| ذره بین | ذبیح | ذاکر |
| نذیر | تذکِره | آذان |
| کاغذ | ذکیه | محاذ |




نس ناستی | کانګې | ناولي

# نس ناستی



نذیر چې کور ته راغی، ویې ویل: مورې! زموږ ښوونځي ته ډاکټران راغلي وو. د نس ناستي په باره کې یې خبرې وکړې. مور یې په خوشحالۍ ترې وپوښتل: ښه زویه! ډاکټرانو څه ویل؟ نذیر وویل: ډاکټرانو ویل چې د نس ناستي ناروغان ژر ژر تشناب ته ځي. کېدای شي کانګې وکړي او نس یې وخوږېږي. که دا بېر وخت دوام وکړي، د بدن اوبه یې کمېږي. مور ته ډاکټرانو دا هم وویل: «ناولي خواړه او هغه څه باید ونه خورو چې مچان وربانديې ګرځي. ناپاکې اوبه هم باید ونه څښو. د ډوډۍ له خوړلو مخکې باید لاسونه پاک ومینځو. د حاجت له رفع کولو وروسته هم باید لاسونه ومینځو. لاسونه باید په صابون او پاکو اوبو ومینځل شي.»



## کلمې او جملې



۱. زلمی درملتون ته ولاړ.
(هغه) درملتون ته ولاړ.
۲. تلوسې له خپلو ملګرو سره ښه چلند کاوه.
(    ) له خپلو ملګرو سره ښه چلند کاوه.
۳. زه او ورېمه روغتون ته ځو.
(    ) روغتون ته ځو.
۴. ننګیالي او ښکلا درمل واخیستل.
(    ) درمل واخیستل.

کلمې

هغه
هغې
موږ
هغوی



## د لغتونو زېرمه



| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱. | تیاره | رڼا | تورتم | ځنګل |
| ۲. | کوچنی | ډاکټر | لوی | وړوکی |
| ۳. | ملګری | انډیوال | دښمن | قلم |
| ۴. | پوهه | ماشومان | ناپوهي | علم |
| ۵. | ساړه | یخ | سابه | ګرم |
| ۶. | مېړانه | زده کړه | بې زړه | زړورتیا |



## د لومړي متن بیا لوستل





کلمې او جملې



| | | |
|---|---|---|
| خوره | و+خوره | وخوره! |
| ثنبه | و+ثنبه | وثنبه! |
| لیکه | و+لیکه | ولیکه! |
| خانده | و+خانده | وخانده! |



واکسین | خوړ | ناروغي



## واکسین



ذاکر ذکیې ته وویل: خورې! ذبیح الله کاکا نه پرېږدي چې لمسیان یې واکسین کړم. وایي چې زما لمسیان، خو روغ دي، واکسین ورته نه کوم. ذکیې وویل: راځه چې په ګډه یې پوه کړو. دوی ذبیح الله کاکا ته ورغلل. ذکیې ورته وویل: ګوره کاکا! تا کور په لوړ ځای کې جوړ کړی دی. ولې دې په خوړ کې نه جوړاوه؟ ذبیح الله کاکا وویل: په خوړ کې، خو کله کله سېل راځي. ذکیې وویل: ناروغۍ هم که نن نشته، سبا به پیدا شي. که ماشومان واکسین نه شي، کېدای شي په ناروغیو اخته شي. واکسین د ځینو ناروغیو مخه نیسي. ذبیح الله کاکا غږ وکړ: هلځ! ماشومان راولئ چې واکسین یې کړي.



## جملې



: ،

۱. زما د خویندو نومونه دا دي: تلوسه، ښکلا، ځلا او مینه.

۲. زموږ هېواد ډول ډول مېوې لري لکه ناک زردآلو شفتالو او منې.

۳. روغتیا ته دغه سابه ګټور دي لکه پالک ګلپي او شلغم.

۴. یو کال څلور فصلونه لري پسرلی دوبی منی او ژمی.

۵. زموږ بیرغ درې رنګه لري تور سور او زرغون.



## د لغتونو زېرمه



| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱. | زوړ | سپین ږیری | روغتیا | ځوان |
| ۲. | سوله | درمل | روغه | جګړه |
| ۳. | ودان | ویجاړ | باران | آباد |
| ۴. | غښتلی | واکسین | پیاوړی | کمزوری |
| ۵. | روغ | جوړ | هېواد | ناروغ |
| ۶. | وړکتوب | مېوه | ځواني | ماشومتوب |



د دویم متن بیا لوستل






غوږ نیول او خبرې کول



ټولنیز مثبت مهارتونه: په ګډه کار کول





نوښتي لیکنه



شکیلا غواړي د باغچې ګلان اوبه کړي.

د دوی باغچه ډېر ګلان لري.

| |
|---|
| کار |
| مرسته |
| احمد |

______________________________________

______________________________________

______________________________________

شکیلا له خپل ورور څخه مننه وکړه.

هغه وویل: موږ باید له یو بل سره مرسته وکړو.


د لومړي او دویم متن بیا لوستل




## کلمې او جملې

الف

| کلمې |
|---|
| هغه |
| هغې |
| زه |
| موږ |
| هغوی |

۱. زلمی درملتون ته ولاړ.
(هغه) درملتون ته ولاړ.

۲. تلوسې یوه ښایسته کتابچه واخیسته.
(        ) یوه ښایسته کتابچه واخیسته.

۳. زه او ورېمه روغتون ته ځو.
(        ) روغتون ته ځو.

۴. تنګیالي او ښکلا درمل واخیستل.
(        ) درمل واخیستل.

ب

| | | | |
|---|---|---|---|
| تیاره | ښکلا | تورتم | ځنګل |
| کوچنی | ډاکټر | لوی | وړوکی |
| روغ | جوړ | هېواد | کلی |
| اندیوال | ملګری | دښمن | قلم |
| پوهه | ماشومان | تیره | علم |

ج

۱. زما د خویندو نومونه دا دي تلوسه ښکلا او ځلا.    : ،

۲. زموږ هېواد ډول ډول مېوې لري لکه ناک زردآلو او شفتالو.

۳. زموږ بیرغ درې رنګه لري تور سور او زرغون.




## د لومړي او دویم متن بیا لوستل







## املا


توري او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| زکریا | ورزش | پیاز | ز |
| کاریز | زرمینه | ذره بین | ذ |
| عذاب | کاغذ | تذکره | |


واليبال ذهن ژمنه


## ورزش



زکریا هره ورځ له ملګرو سره په کوڅه کې واليبال کاوه. يوه ورځ د دوی توپ د زرمینې ترور په کور کې ولوېد.

زرمینه ترور له کوره راووته او زکریا ته يې وويل: زويه! ولې مو په دې توپ هسې ځان له کاره ايستلی دی؟

زکریا ورته وويل: ترورې! ځان له کاره نه باسو، ورزش کوو. زرمینې ترور وويل: زويه! ورزش څه ګټې لري؟ هغه ځواب ورکړ: ترورې! څوک چې ورزش کوي، بدن يې ښه وده کوي. ذهن يې ښه وي. ژر نه ناروغه کېږي.

زرمینې ترور وويل: زويه! چې دومره ګټې لري، بيا په مناسب ځای کې ورزش کوئ. خو په داسې ځای کې نه چې څوک په عذاب شي.

هغوی ژمنه وکړه چې نور به په سم ځای کې لوبې کوي.



## کلمې او جملې



۱. خوشحال هره ورځ ورزش کوي.

(هغه) هره ورځ ورزش کوي.

۲. زرغونې پرون يو ښکلی قلم واخيست.

(      ) پرون يو ښکلی قلم واخيست.

۳. زه او ځانګه خپل غاښونه پاک ساتو.

(      ) خپل غاښونه پاک ساتو.

۴. زلمی او توريالی درس لولي.

(      ) درس لولي.

**کلمې**

هغه

هغې

موږ

هغوی



## د لغتونو زېرمه



| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱. | خام | اومه | واليبال | پوخ |
| ۲. | لوړ | ټيټ | جګ | ورزش |
| ۳. | ويښ | ورځ | ويده | بيدار |
| ۴. | ګټه | زيان | فايده | توپ |
| ۵. | صبر | ميدان | بې صبري | زغم |
| ۶. | عالم | چمن | پوه | جاهل |



## د لوړې متن بيا لوستل






## کلمې او جملې

| | | |
|---|---|---|
| څم | زه + څم | زه څم |
| ګورو | موږ + ګورو | موږ ګورو |
| راځي | هغوی + راځي | هغوی راځي |
| ځي | هغه + ځي | هغه ځي |




سلامتیا غذا ملتیا

## د روغتیا ترانه



خپله روغتیا ساتمه — سلامتیا ساتمه
مخ او لاسونه مینځم — جامې صفا ساتمه
پاک مې غاښونه ساتم — د ځان ښکلا ساتمه
نه خورم ناپاکې مېوې — پاکه غذا ساتمه
ورزش مې کار دی هر وخت — دغه ملتیا ساتمه
ګرد او غبار دی مرض — ځان له بلا ساتمه
له ناپاکیو ښخه — پاک شاوخوا ساتمه
خیال د خپل کور د پاکۍ — په بیا او بیا ساتمه



## جملې



: ،

۱. ورزشي لوبې دا دي: فوټبال، کرېکټ، منډې وهل او واليبال.

۲. د اونۍ ورځې دا دي شنبه یکشنبه دوشنبه سه‌شنبه چهارشنبه پنجشنبه او جمعه.

۳. زما دا رنګونه خوښېږي شين سور ژېړ سپين او تور.

۴. دا خواړه زموږ روغتيا ته ګټه‌رسوي لکه غوښه لوبيا نخود او سابه.

۵. زموږ هېواد ډول ډول وچې مېوې لري لکه بادام پسته جلغوزي او غوزان.



## د لغتونو زېرمه



| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱. مينه | محبت | کرکه | بڼ |
| ۲. کوچنيان | ماشومان | جامې | لويان |
| ۳. ستړی | ښکلی | هوسا | ستومانه |
| ۴. توان | روغتيا | طاقت | ناتوان |
| ۵. سهار | ګهيځ | ماښام | غذا |
| ۶. ښکلی | ښايسته | غاښونه | بدرنګ |



د دويم متن بيا لوستل







## غوږ نیول او خبرې کول





**ټولنیز مثبت مهارتونه او د شخړو حلول: مثبت چلند او د ځورولو مخنیوی**





## نوښتي لیکنه



احمد او راشد ښه ملګري دي. دوی تل یوځای لوبې کوي، خو زلمی راشد ځوروي.
زلمی تل راشد وهي او کتابونه یې ترې اخلي.

| |
|---|
| خپه |
| ژړل |
| مخنیوی |
| ملګری |
| ښه |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل






## کلمې او جملې

الف

کلمې
- هغه
- هغې
- موږ
- هغوی

۱. خوشحال ورزش کوي.
(هغه) ورزش کوي.
۲. زرغونې قلم واخیست.
(      ) قلم واخیست.
۳. زه او ځانګه خپل غاښونه پاک ساتو.
(        ) خپل غاښونه پاک ساتو.
۴. زلمی او توریالی درس لولي.
(        ) درس لولي.

ب

| | | | |
|---|---|---|---|
| خام | اومه | پوخ | لمر |
| لوړ | بیرغ | جګ | ټیټ |
| ګټه | تاوان | توپ | فایده |
| مینه | قلم | جفا | محبت |
| ستړی | ښکلا | هوسا | ستومانه |

ج

: ،

۱. ورزشي لوبې دا دي: فوټبال، کرېکټ، منډې وهل او والیبال.
۲. د اونۍ ورځې دا دي شنبه یکشنبه دوشنبه سه شنبه چهارشنبه پنجشنبه او جمعه.
۳. زما دا رنګونه خوښېږي شین سور ژیړ سپین او تور.




## د لومړي او دویم متن بیا لوستل







## املا


## تورې او کلمې


| | | | |
|---|---|---|---|
| ظریف | ظاهره | ظرفونه | ظ |
| نظیفه | مظلوم | نظر | |
| محفوظ | لفظ | لحاظ | |


لرغونې مناروونه مرکز


## د غزني لرغونی ښار



غزني د افغانستان يو پخوانی او لرغونی ښار دی. يو وخت په دې ښار کې مشهور عالمان او پوهان اوسېدل.

اوس ډېر خلک غواړي چې دا ښار وګوري.

ظريف تېره اونۍ غزني ته تللی و. هغه وويل:

مورږ ښوونکي د لرغونو آثارو ليدلو ته بوتلو.

ظاهرې وپوښتل: وروره! هلته مو څه وليدل؟

ظريف ورته وويل: موږ د غزني دنګ او ښکلي مناروونه وليدل. دا مناروونه ډېر پخوا جوړ شوي دي.

ظاهرې وويل: ښه! نور مو کوم ځايونه وليدل؟

هغه ځواب ورکړ: بيا د سلطان محمود پاچا باغ او قبر ته ولاړو.

موږ ته ښوونکي وويل: «دا ښار پخوا د غزنوي پاچاهانو مرکز و.»




## کلمې او جملې

۱. هوسۍ د مشرانو درناوی کوي.
(هغه) درناوی کوي.
۲. وحيده او سارا د مشرانو خبرو ته غوږ نيسي.
(        ) د مشرانو خبرو ته غوږ نيسي.
۳. نجيب او عزيز جومات ته ځي.
(        ) جومات ته ځي.
۴. زه او مور مې کلي ته تللي وو.
(        ) کلي ته تللي وو.

کلمې:
مور
دوی
هغه
هغوی




## د لغتونو زېرمه

۱. حامد خپل ځان (پاک) ساتي.
۲. سپوږمۍ (        ) ته راغله.
۳. توريالی (        ) ته ولاړ.
۴. خالد د (        ) تلاوت کوي.
۵. (        ) يې ښه وده کوي.
۶. مورېتول (        ) يو.

کلمې:

| | |
|---|---|
| پاک | دريم |
| لمر | کور |
| کاغذ | غزني |
| کتابچه | قرآن شريف |
| افغانستان | بدن |
| خويندې | افغانان |




## د لومړي متن بيا لوستل



## کلمې او جملې



| | | |
|---|---|---|
| ځم | زه + ځم | زه ځم. |
| لاړو | موږ + لاړو | موږ لاړو. |
| کوو | موږ + خبرې کوو | موږ خبرې کوو. |
| ځي | هغوی + ځي | هغوی ځي. |



سراج العمارت پښېمانه ژمنه



# ونو ته پام



خيبر او سهراب په ننګرهار کې د سراج العمارت په باغ کې ګرځېدل.

سهراب د يوې ونې نرۍ ښاخ ته لاسونه ورواچول. هغه يو دوه ځله په کې وزنګېده. ښاخ رامات شو. خيبر وويل: سهرابه! څومره ښايسته ښاخ و، ولې دې مات کړ؟

سهراب ځواب ورکړ: څه يې کوې. مات دې وي. په يوه ښاخ به څه وشي. په دې وخت کې محمد ګل ښوونکی راغی. ورته ويې ويل: نه زويه! که هر څوک يو يو ښاخ مات کړي، يوه ونه به هم پاتې نه شي. په ونو او ګلانو زموږ هېواد ښکلی دی.

سهراب په خپل کار پښېمانه شو. هغه ژمنه وکړه چې بيا به د ونو ښاخونه نه ماتوي.



## جملې



| راتلونکی | اوس |
| --- | --- |
| زرغونه به ډوډۍ وخوري. | ۱. زرغونه ډوډۍ خوري. |
| احمد به ورزش وکړي. | ۲. احمد ورزش کوي. |
| هغوی به خپل درسونه ووایي. | ۳. هغوی خپل درسونه وايي. |
| زه به نیالګیو ته اوبه ورکړم. | ۴. زه نیالګیو ته اوبه ورکوم. |
| هغوی به خپله سیمه سمسوره کړي. | ۵. هغوی خپله سیمه سمسوروي. |



## د لغتونو زېرمه



۱. فرید (هوښیار) هلک دی.
۲. ځلا او ښکلا ( ) کېښنوي.
۳. غزنی ښایسته ( ) لري.
۴. موږ خپل ټولګی ( ) ساتو.
۵. زموږ د هېواد نوم ( ) دی.
۶. د افغانستان پلازمېنه ( ) ده.

کلمې

| | |
| --- | --- |
| آسمان | هوښیار |
| نیالګي | اوبه |
| منارونه | نارنج |
| پاک | اوبه |
| کونړ | افغانستان |
| کابل | ننګرهار |



د دویم متن بیا لوستل










غوږ نیول او خبرې کول

د شخړو حلول: د څورولو پېژندل او په ګوته کول






نوښتي لیکنه

ظریف د څلورم ټولګي زده کوونکی و. ده به هره ورځ ظاهر څوراوه.
ظریف به ظاهر په بد نوم یاداوه.

محفوظ له خپل کشر ورور ظاهر څخه پوښتنه وکړه
چې ولې خپه یې؟ ظاهرخپل ورور ته کیسه وکړه.

محفوظ وویل: زه به له ظریف سره په دې اړه خبرې وکړم.
هغه به په دې پوه کړم چې څورول ښه کار نه دی.

خپه

څورول

منفه




د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې



الف

۱. هوسۍ درس لولي. (هغه) درس لولي.
۲. ډېوه او سپوږمۍ ښوونځي ته ځي.
( ) ښوونځي ته ځي.
۳. خیبر او اتل غزني ته ځي.
( ) غزني ته ځي.
۴. زه او ځلا کلي ته تللي وو.
( ) کلي ته تللي وو.

کلمې: هغه، موږ، هغوی، دوی

ب

۱. ښه زده کوونکي د مشرانو ــــــ ته غوږ نیسي.
۲. زما ټولګیوال ــــــ دي.
۳. ښوونکی ــــــ ته ولاړ.
۴. خالد له ملګرو سره ــــــ نه کوي.
۵. زه ډېر ــــــ لرم.

کلمې: کتاب خبرو، لمر خوشحاله، ځمکې ننګرهار، کتابچه لانجه، کتابونه کابل

ج

| اوس | راتلونکی |
|---|---|
| ۱. پرویز خپلو ګاونډیانو سره مرسته کوي. | پرویز به له خپلو ګاونډیانو سره مرسته وکړي. |
| ۲. زه نیالګیو ته اوبه ورکوم. | زه به نیالګیو ته اوبه ورکړم. |
| ۳. هغوی خپل ښار پاک ساتي. | هغوی به خپل ښار پاک وساتي. |
| ۴. زه ښوونځي ته ځم. | زه به ښوونځي ته لاړ شم. |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا





توري او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| ضیا | ضابط | ضرورت | ض |
| مرضیه | عریضه | حضرت | |
| حوض | مریض | عارض | |



نوټونه · ناچله · ارزښت



## افغانۍ



د ضیا کوچنۍ لور، مرضیې وویل: پلاره! پیسې راکړه چې د رسم کتابچه واخلم. پلار یې پنځوس افغانۍ ورکړې. هغه نژدې دوکان ته ورغله. دوکاندار یوه کتابچه او څلور زاړه لسګون نوټونه ورکړل. مرضیې وویل: ما ته نوي نوټونه راکړه. دوکاندار ځواب ورکړ: څه ناچله خو نه دي. مرضیه خپه شوه. دوکاندار وویل: مه خپه کېږه. زه به نوي نوټونه درکړم، خو خلک پیسې ښې نه ساتي.

مرضیه چې کور ته راغله، پلار ته یې کیسه وکړه.

پلار یې وویل: دوکاندار ښه وایي. نوټونه باید ښه وساتل شي. افغانۍ زموږ د هېواد پیسې دي. د افغانیو په چاپولو ډېرې پیسې لګېږي. هر څوک باید پیسې ښه وساتي.



## کلمې او جملې



کلمې

مور
دوی
هغه
هغوی

۱. زه او هوسۍ له خپلو پیسو سره مینه لرو.
(مور) له خپلو پیسو سره مینه لرو.
۲. خالد پنځوس افغانۍ راکړې.
(      ) پنځوس افغانۍ راکړې.
۳. ابراهیم او یوسف په پیسو قلمونه اخلي.
(      ) په پیسو قلمونه اخلي.
۴. هیله او مرضیه له یو بل سره مرسته کوي.
(      ) له یو بل سره مرسته کوي.



## د لغتونو زېرمه



کلمې

| | |
|---|---|
| آسمان | هرات |
| هېواد | کلی |
| کتابچې | افغانۍ |
| ښوونکې | کتاب |
| کابل | دېوال |
| کور | دریم |

۱. زه (هرات) ته ځم.
۲. افغانستان زموږ (      ) دی.
۳. زموږ پیسې (      ) دي.
۴. زما مور (      ) ده.
۵. د احمد کور په (      ) کې دی.
۶. هوسۍ د (      ) ټولګي زده کوونکې ده.



## د لومړي متن بیا لوستل





کلمې او جملې



| | | |
|---|---|---|
| ځو | موږ + ځو | موږ ځو. |
| خوري | هغوی + خوري | هغوی خوري. |
| ځي | هغه + ځي | هغه ځي. |
| راځي | دوی + راځي | دوی راځي. |



لرغوني غاټول بُزکشي



## د گلِ سُرخ مېله



د گلِ سُرخ لرغوني مېله هر پسرلي په بلخ کې جوړېږي. سږ کال ضیا له کورنۍ سره دې مېلې ته تللی و. گورې چې د شادیان دښته سرو غاټولو پوښلې ده. دښته داسې سره وه لکه سور بخمل. ضیا یو هلک ولید چې ښکلې جامې او برگه چپنه یې اغوستې وه. پر سر یې سره خولۍ وه. دوی سره ملگري شول. هغه ضمیر نومېده او د هغه ځای او سېدونکی و. لږ لرې په لوی میدان کې خلکو آسونه ځغلول. ضیا وویل: دا خلک څه کوي؟ ضمیر ځواب ورکړ: دوی بُزکشي کوي. راځه چې زه او ته هم لوبې وکړو. ضیا او ضمیر لوبې وکړې او له مېلې څخه یې خوند واخیست.



## جملې



| راتلونکی | اوس |
| --- | --- |
| موږ به له خپلو پیسو سره مینه ولرو. | ۱. موږ له خپلو پیسو سره مینه لرو. |
| هوسۍ او غوټۍ به خوشحاله وي. | ۲. هوسۍ او غوټۍ خوشحاله دي. |
| افغانان به له افغانستان سره مینه ولري. | ۳. افغانان له افغانستان سره مینه لري. |
| زه به ډوډۍ وخورم. | ۴. زه ډوډۍ خورم. |
| زه به د مور او پلار درناوی وکړم. | ۵. زه د مور او پلار درناوی کوم. |



## د لغتونو زېرمه



۱. موږ یو پر بل (مهربانه) یو.

۲. غوټۍ او ښکلا سره ( ) دي.

۳. د افغانستان بیرغ ( ) رنګه لري.

۴. د افغانستان پلازمېنه ( ) دی.

۵. احمد خپل کتابونه ( ) ساتي.

۶. سلیمان ( ) کوي.

کلمې

| | |
| --- | --- |
| مهربانه | غرونه |
| سرې | خویندې |
| درې | پنځه |
| کندهار | کابل |
| ښه | ساعت |
| لمونځ | اوبه |



د دویم متن بیا لوستل










## غوږ نيول او خبرې کول

د شخړو حلول: ځورول او د زده کوونکو عکس العمل






## نوښتي ليکنه

ظريف لا هم ظاهر ځوراوه.
ظاهرخپه و او نه يې غوښتل چې ښوونځي ته ولاړ شي.

___

___

د ظاهر ټولګيوالو تصميم ونيو چې له هغه سره مرسته وکړي. هغوی خپل ښوونکي ته وويل چې ظريف تل ظاهر ځوروي.

___

د ظريف ورور محفوظ او ټولګيوال خوشحاله وو چې ظريف اوس ظاهر نه ځوروي.

___

مور او پلار
نصيحت
مخنيوی
ټولګی




## د لومړي او دويم متن بيا لوستل

## کلمې او جملې



### الف

| کلمې |
|---|
| هغه |
| موږ |
| هغوی |
| دوی |

۱. زه او هوسۍ له خپلو پیسو سره مینه لرو.
( ) له خپلو پیسو سره مینه لرو.
۲. خالد پنځوس افغانۍ راکړې.
( ) پنځوس افغانۍ راکړې.
۳. ابراهیم او یوسف په پیسو قلمونه اخلي
( ) په پیسو قلمونه اخلي.
۴. هیله او اسما له یو بل سره مرسته کوي.
( ) له یو بل سره مرسته کوي.

### ب

۱. موږ یو پر بل (مهربانه) یو.
۲. غوټۍ او ښکلا سره ( ) دي.
۳. د افغانستان بیرغ ( ) رنګه لري.
۴. د افغانستان پلازمینه ( ) دی.
۵. احمد خپل کتابونه ( ) ساتي.
۶. سلیمان ( ) کوي.

| کلمې | |
|---|---|
| مهربانه | غرونه |
| سرک | خوېندي |
| درې | پنځه |
| کندهار | کابل |
| نبه | ساعت |
| لمونځ | وبه |

### ج

| اوس | راتلونکې |
|---|---|
| ۱. موږ له خپلو پیسو سره مینه لرو. | موږ به له خپلو پیسو سره مینه ولرو. |
| ۲. هوسۍ او غوټۍ خوشحاله دي. | هوسۍ او غوټۍ به خوشحاله وي. |
| ۳. افغانان له افغانستان سره مینه لري. | افغانان به له افغانستان سره مینه ولري. |
| ۴. زه کور ته ځم. | زه به کور ته لاړ شم. |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا




تورې او کلمې


| | | | |
|---|---|---|---|
| ظفر | محفوظ | ظرف | ظ |
| نظر | منظرې | ضرب | |
| ضیا | عارض | عریضه | ض |


خندق دښمن امن


## زرغونه انا



راضیې له ظریفې څخه پوښتنه وکړه: زرغونه انا څوک وه او ولې یې انا بولو؟ ظریفې وویل: زرغونه انا د احمدشاه بابا مور وه. کله چې احمدشاه بابا پاچا شو، مشرانو ورته وویل: د کندهار ښار شاوخوا دېوالونه راتاو کړه. خندق هم وکینده چې له دښمن څخه په امن شو. زرغونه انا چې خبره شوه، ویې ویل: زویه! ته خو د ټول افغانستان مشر یې. باید داسې پاچا واوسې چې ټول وطنوال درسره مینه وکړي. که دا ښار په دېوالونو ساتې، نو ټول وطن به څنګه وساتې؟ ته باید د ټولو وطنوالو د ساتنې فکر وکړې. راضیې وویل: پوه شوم. انا ځکه ورته وایو چې د ټولو وطنوالو په فکر کې وه.



## کلمې او جملې



| کلمې |
| --- |
| موږ |
| دوی |
| دی |
| هغوی |
| هغه |

۱. اجمل او ایمل له هېواد سره مینه لري.

(هغوی) له هېواد سره مینه لري.

۲. محمود او خالد ښوونځي ته ځي.

(      ) ښوونځي ته ځي.

۳. ملالۍ په دریم ټولګي کې ده.

(      ) په دریم ټولګي کې ده.

۴. خوشحال او الهام لوبې کوي.

(      ) لوبې کوي.

۵. زه او یاسین د هېواد ترانه لولو .

(      ) د هېواد ترانه لولو.



## د لغتونو زېرمه



| کلمې | |
| --- | --- |
| ښار | آسمان |
| ګران | لوبې |
| میدان | لوستل |
| احمدشاه بابا | اوبه |
| غر | کتابون |
| لمر | بازار |

۱. زه (ښار) ته ځم.

۲. پر موږ خپل هېواد (          ) دی.

۳. دا د لوبو (          ) دی.

۴. زرغونه انا د (          ) مور وه.

۵. پلوشه او سپوږمۍ په پیسو (          ) اخلي.

۶. بلال او حارث (          ) ته ځي.



## د لومړي متن بیا لوستل





## کلمې او جملې



| | | |
|---|---|---|
| وايي | هغوی + وايي | هغوی وايي. |
| خاندو | موږ + خاندو | موږ خاندو. |
| ځي | دوی + ځي | دوی ځي. |
| اوري | دی + اوري | دی اوري |



د بوډۍ ټال | جلګې | زرغون



## د وطن ترانه




ور سره مينه لرو
ښکلی وطن زمونږه
د بوډۍ ټال يې وا وا
خوږې مېوې يې اها
د شپې يې ستورو باندې
غرونه، رغونه وا وا
جلګې، باغونه اها
په علم، پوهه باندې
تور، سور، زرغون وا وا
د خدای احسان دی اها
د زړه دارو او درمان

را باندې ګران دی
افغانستان دی
ميده باران ښايسته
رنګين ګلان ښايسته
ښکلی آسمان دی
دښتې، درې تکې شنې
واه منظرې تکې شنې
ودان ودان دی
بيرغ نښان لرو
افغانستان لرو
د هر افغان دی



## جملې



| راتلونکی | اوس |
| --- | --- |
| موږ به له موږ سره مرسته وکړو. | ۱. موږ له موږ سره مرسته کوو. |
| زه به له خپل پلار سره درس ووایم. | ۲. زه له خپل پلار سره درس وایم. |
| ښوونځی به د زده کړې ځای وي. | ۳. ښوونځی د زده کړې ځای دی. |
| هوسۍ به لمونځ وکړي. | ۴. هوسۍ لمونځ کوي. |
| نصیر احمد به تلاوت وکړي. | ۵. نصیر احمد تلاوت کوي. |



## د لغتونو زېرمه



۱. خوشحال او الهام (تولګیوال) دي.
۲. سپوږمۍ د (        ) ترانه لولي.
۳. زه د مور (        ) کوم.
۴. زموږ د هېواد نوم (        ) دی.
۵. ملالۍ د هېواد ملي (        ) وه.
۶. ملالۍ د کوم (        ) وه؟

**کلمې**

| | |
| --- | --- |
| اوبه | تولګیوال |
| آسمان | وطن |
| درناوی | خبره |
| افغانستان | ننګرهار |
| ښوونکې | اتله |
| کتاب | هېواد |



د دویم متن بیا لوستل







## غوږ نیول او خبرې کول

د شخړو حلول: د ځورولو مخنیوی کول






## نوښتي لیکنه

ذبیح د لوبو په میدان کې زده کوونکي ځوروي.

هغه زده کوونکو ته بد نومونه اخلي او وهي يې.

بښوونکی

ټولګی

ملګري

خوشحاله




## د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې

### الف

۱. اجمل او ایمل له هېواد سره مينه لري.
(هغوی) له هېواد سره مينه لري.
۲. زه او خالد ښوونځي ته ځو.
( ) ښوونځي ته ځو.
۳. ملالۍ ملي اتله ده.
( ) ملي اتله ده.
۴. خوشحال او الهام لوبې کوي.
( ) لوبې کوي.
۵. یاسین د هېواد ترانه لولي.
( ) د هېواد ترانه لولي.

| کلمې |
| --- |
| هغوی |
| موږ |
| هغه |
| دوی |
| دی |

### ب

زه (ښار) پاک ساتم.
پر موږ خپل هېواد ـــــ دی.
دا د لوبو ـــــ دی.
باغوان ګلانو ته ـــــ ورکوي.
پلوشه او سپوږمۍ په پیسو ـــــ اخلي.

| کلمې | |
| --- | --- |
| تیږه | ښار |
| لوبې | ګران |
| لوستل | میدان |
| کور | اوبه |
| لمر | بکسې |

### ج

| اوس | راتلونکی |
| --- | --- |
| ۱. زه ژوبڼ ته ځم. | زه به ژوبڼ ته ولاړ شم. |
| ۲. بزګر په ځمکه کې کار کوي. | بزګر به په ځمکه کې کار وکړي. |
| ۳. هغوی خپل هېواد سمسوروي. | هغوی به خپل هېواد سمسور کړي. |
| ۴. هوسۍ لمونځ کوي. | هوسۍ به لمونځ وکړي. |
| ۵. سلیم تلاوت کوي. | سلیم به تلاوت وکړي. |





## د لومړي او دويم متن بيا لوستل







## املا



توري او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| مېز | زبیر | زرکه | ز |
| بزګر | پیاز | نذیر | ذ |
| کاغذ | ذره بین | ذاکر | |



موسکی | روغ | ګټې



## زېور اکا



ذاکر او ذکیه د خپل بابا لیدو ته تللي وو. هغه زېور اکا نومېده. پاکې جامې یې اغوستې وې او لونګۍ یې پر سر وه. هغه ښه ښکارېده. ذاکر ورته وویل: بابا! ته د څو کالو یې؟

زېور اکا ورته موسکی شو، تک سپین غاښونه یې ښکاره شول. ویې ویل: پوره نوي کلن یم. ذکیې پوښتنه وکړه: نو غاښونه دې څنګه داسې روغ پاتې دي؟ زېور اکا وویل: بچیانو! زه هر وخت تر خوراک وروسته غاښونه په بُرس یا مِسواک مینځم. بدن مې پاک ساتم او ورزش کوم، نو شکر بدن مې روغ دی. ذاکر وویل: ښه! زه اوس پوه شوم چې پاکي او ورزش څومره ګټې لري.



## کلمې او جملې



١. ذکیه موزیم ته ځي.　　(هغه) موزیم ته ځي.

٢. ادریس او زکریا خپل ځانونه پاک ساتي. (　　) خپل ځانونه پاک ساتي.

٣. کریم د مناړونو سیل کوي. (　　) د مناړونو سیل کوي.

۴. زرمینه او ذاکره د دارالامان ماڼۍ ته ځي. (　　) دارالامان ماڼۍ ته ځي.

۵. ځلا د مور او پلار خبرو ته غوږ نیسي. (　　) د مور او پلار خبرو ته غوږ نیسي.

کلمې: دوی، هغوی، هغه

: ،

١. زموږ هېواد ډېر لرغوني ځایونه لري، لکه: د هرات جامع جومات او مناړونه، د غزني مناړونه، د هلمند د بُست کلا، د رستم تخت او داسي نور.

٢. زموږ د هېواد پیسې دا نوټونه لري د یوې د دوو پنځو لسو شلو پنځوسو سلو پنځه سوو او زرو افغانیو نوټونه.

٣. ښوونکي وویل راتلونکې اونۍ کې د رسم پښتو ریاضي او دینیات مضمونونو ازموینه ده.



## د لغتونو زېرمه



١. احمد خوشحاله دی.

٢. زه پوهه ترلاسه کوم.

٣. بلال سبق وایي.

۴. محمود ستړی دی.

۵. زه ښوونځي ته ځم.

٦. ظاهر ښتمن دی.

کلمې:

| | |
|---|---|
| ناست | خوښ |
| علم | مکتب |
| زده کړه | درس |
| ستومانه | خپه |
| کور | مکتب |
| بډای | غټ |



## د لومړي متن بیا لوستل





## توري او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| ظ | لحاظ | لفظ | ظاهر |
| | مرضیه | ریاض | مظلوم |
| ض | فرض | حوض | ضابط |



موزیم — مجسمه — لوښي



## موزیم



ظاهره او مرضیه په دریم ټولګي کې زده کړې کوي.

مرضیه ناروغه وه. هغه ورځ ښوونځي ته نه وه تللې. ښوونکي یې ټولګیوال موزیم ته بېولي وو. ظاهره هم ورسره تللې وه. کله چې کور ته راغله، مرضیې ته یې ټوله کیسه وکړه. ویې ویل: ښوونکي مجسمې، ډبرین او خاورین لوښي راوښودل. پر مرمرینو ډبرو لیکنې شوې وې. د حیواناتو او الوتونکو انځورونه مو هم ولیدل. بیا یې ډول ډول جامې راوښودې.

مرضیې وویل: څومره ښه ځایونه مو لیدلي دي. کاشکې زه هم درسره تللې وای. پلار یې مرضیې ته وویل: لورې! کله چې جوړه شې، بیا به دې زه موزیم ته بوځم.

مرضیه خوشحاله شوه چې پلار یې موزیم ته بیایي.



## کلمې او جملې



| | |
|---|---|
| ۱. اتل قلم لري. | (هغه) قلم لري. |
| ۲. پلوشه او زرمینه باغ ته ځي. | ( ) باغ ته ځي. |
| ۳. احمد او محمود موزیم ته تللي وو. | ( ) موزیم ته تللي وو. |
| ۴. ما او تلوسي له یو بل سره مرسته وکړه. | ما او ( ) له یو بل سره مرسته وکړه. |

کلمې: هغه، هغوی، هغې

| اوس | راتلونکی |
|---|---|
| ۱. ډېوه موزیم ته ځي. | ډېوه به موزیم ته لاړه شي. |
| ۲. زړګی خپلې جامې پاکې ساتي. | زړګی به خپلې جامې پاکې وساتي. |
| ۳. لېمه خاورین لوښي جوړوي. | لېمه به خاورین لوښي جوړ کړي. |



## د لغتونو زېرمه



| | | | |
|---|---|---|---|
| ناروغان | زړې وسیلې | پخواني لوښي | مجسمې |
| زاړه کتابونه | ډاکټر | کرېکټ | درملتون |
| باسکتبال | درمل | واليبال | فوټبال |

| روغتون | موزیم | ورزش |
|---|---|---|
| ډاکټر | پخواني لوښي | فوټبال |
| ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ |



## د دویم متن بیا لوستل







غوږ نیول او خبرې کول

د شخړو حلول: د ځورولو مخنیوی کول







نوښتي لیکنه

مریم د دریم ټولګي زده کوونکې ده. هغه د لوبو په میدان کې کوچني ماشومان ځوروي. مریم کوچني ماشومان پورې وهي، جامې يې ترې کشوي او هغوی ته بد نومونه اخلي. ټول ماشومان له مریم څخه ډارېږي.

ښوونکی
ټولګي
خبرې

---

---

---

مریم پوهه شوه چې په ځورولو سره ملګري نه شي پیدا کولی. مریم د ماشومانو ځورول پرېښودل.





د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې



### الف

۱. مرضیه موزیم ته ځي.
(هغه) موزیم ته ځي.

۲. اِدریس او زبیر خپل ځانونه پاک ساتي.
(      ) خپل ځانونه پاک ساتي.

۳. کریم او ظاهر د منارونو سیل کوي.
(      ) د منارونو سیل کوي.

کلمې
هغوی
هغه
دوی

### ب

| | |
|---|---|
| مرضیه خوشحاله ده. | ناست، خوښه |
| زه پوهه ترلاسه کوم. | علم، ښوونځي |
| بلال سبق وايي. | زده کړه، درس |
| ظاهره ستړې ده. | ستومانه، خپه |
| زه ښوونځي ته ځم. | کور، مکتب |
| محمود شتمن دی. | بډای، غټ |

### ج

| اوس | راتلونکی |
|---|---|
| ۱. ځلا او هوسۍ پغمان ته ځي. | ځلا او هوسۍ به پغمان ته ولاړې شي. |
| ۲. لمر او روښان کتابتون ته ځي. | لمر او روښان به کتابتون ته ولاړ شي. |
| ۳. ډېوه موزیم ته ځي. | ډېوه به موزیم ته ولاړه شي. |
| ۴. شمشاد او خیبر په الوتکه کې بلخ ته ځي. | شمشاد او خیبر به په الوتکه کې بلخ ته ولاړ شي. |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## اِملا





تورې او کلمې



ح

| | | |
|---|---|---|
| حاجي | محمد | اصلاح |
| حامد | محمود | نصیحت |
| نکاح | صلح | صالح |



شنه خونه | اغزن | ډاګ



## شنه خونه

تېر کال هلته یوازې وچ اغزن ډاګ و.
د حمیدې پلار حکیم خان په کې د ترکاریو فارم جوړ کړ.
هغه سپین ږیری دی، خو کار کوي چې اولادونه یې مکتب ووایي. د حمیدې پلار لــــه بې کاره ځمکې شنه خونه جوړه کړه. دی په دې شنه خونه کې بادرنګ او بانجان کري. هغه په یوه کال کې دومره پیسې وګټلې چې ښه ګوزاره یې وشوه.
حـمیـده وایي: «پلار مــې وخت بې ځایه نه تېروي، کار کوي.



د ترکاریو په پیسو زموږ د کور او مکتب ټول لګښتونه پوره کوي.»
حمیده د شنې خونې په جوړېدو خوشحاله ده. هغه هر مازدیګر شنې خونې ته ځي او له پلار سره مرسته کوي.




## کلمې او جملې

منفي فعل

نه کرم
نه اوبه کوي
نه راتلولو
نه خوښوي
نه ځي

۱. زه بادرنګ کرم.  زه بادرنګ (نه کرم)

۲. زه رومیان راتلولو.  زه رومیان (          )

۳. شمشاد بانجان اوبه کوي.  شمشاد بانجان (          )

۴. خیبر هر مازدیګر فارم ته ځي.  خیبر هر مازدیګر فارم ته (          )

۵. ځلا ترکاري خوښوي.  ځلا ترکاري (          )




## د لغتونو زېرمه

بادرنګ
مستې
کوچ
منې
ناک
شیدې
دال
لوبیا
نخود
بېنډۍ
رومیان
زردآلو

**شنه خونه**
رومیان
______
______
______

**لبنیات**
کوچ
______
______
______

**حبوبات**
دال
______
______
______

**مېوې**
ناک
______
______
______




## د لومړي متن بیا لوستل



## کلمې او جملې

| | | |
|---|---|---|
| ښنم | نه + ښنم | نه ښنم. |
| خورم | نه + خورم | نه خورم. |
| کرم | نه + کرم | نه کرم. |
| خاندم | نه + خاندم | نه خاندم. |



زعفران — نرۍ — پلورل



# زعفران

په ننګرهار کې د زعفرانو د کښت په اړه غونډه جوړه شوه. په غونډه کې د کرنې مسؤولینو او بزګرانو ګډون کړی و. غونډه د قرآن کریم د څو مبارکو آیتونو په تلاوت پیل شوه. بیا د کرنې رییس د زعفرانو په ارزښت خبرې وکړې.

هغه وویل: زموږ د هیواد زعفران د نړۍ په بازارونو کې ښه پلورل کېږي. زعفران د خوړو، درملو، عطرو او رنګونو په جوړولو کې کارول کېږي.

وروسته یوه بزګر وویل: موږ غواړو



چې د کوکنارو پر ځای د زعفرانو کښت پیل کړو. موږ ته باید د زعفرانو د کښت په برخه کې لارښوونې وشي.

په پای کې د زغفرانو د راټولولو په اړه یو فلم وښودل شو.




## جملې

۱. اتل بانجان کري. ( س )

۲. حامد غنم کري او خیبر یې اوبه کوي. ( م )

۳. مسلمه بادرنګ اخلي او کورته یې وړي. (   )

۴. حمیده چای څښي . (   )

۵. حدیثه زعفران اخلي او کورته یې وړي. (   )




## د لغتونو زېرمه

| څاروي | | آسمان |
|---|---|---|
| اوښ | رامبېل | لمر |
| | لمر | |
| | چنار | |
| | غاټول | |
| | اوښ | |
| | نښتر | |
| | اسپه | |
| **ونې** | سپوږمۍ | **ګلان** |
| چنار | نرګس | نرګس |
| | صبر | |
| | ستوري | |
| | اس | |



## د دویم متن بیا لوستل









غوږ نیول او خبرې کول

ټولنیز مثبت مهارتونه: له خلکو سره چلند






نوشتې لیکنه

زه له خپلو ملګرو سره د لوبو شیان شریکوم.

زما ملګري له ما سره مینه لري.

زه باید څه وکړم چې خلک را سره مینه ولري؟

مهربان

بخښنه

مرسته

زه چې ښه کارونه کوم نو خلک را سره مینه لري.




د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې



الف

منفي فعل

۱. زه بادرنګ کرم.
زه بادرنګ نه کرم. | نه کرم

۲. زه رومیان راټولوم.
زه رومیان (            ). | نه راټولوم

۳. شمشاد بانجان اوبه کوي.
شمشاد بانجان (            ). | نه اوبه کوي

ب

۱. زه د زعفرانو چای څښم. (س)
۲. اتل بانجان کري او خیبر یې اوبه کوي. ( م )
۳. اوربل بادرنګ خوري او کورته یې وړي. (    )
۴. حمیده چای څښي او پیاله مینځي. (    )
۵. ستورې زعفران اخلي او کورته یې وړي. (    )

ج

رامبیل
لمر
چینار
غاټول
نښتر
پسه
سپوږمۍ
خر
کشمالي
صبر
ستوري
وزه

| اسمان | خاروي | ګلان | ونې |
|---|---|---|---|
| سپوږمۍ | ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ | ________ |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا





توري او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| منه | نبته | اره | ه |
| شهرت | جوهر | مهربان | |
| هوا | هیلۍ | هېواد | هـ |



لاسي صنايع | نندارتون | ليمخي



## لاسي صنايع



نن د پکتيا په مرکز کې د لاسي صنايعو نندارتون پرانيستل شو. د لاسي صنايعو نندارتون د قرآن کريم د څو مبارکو آيتونو په تلاوت پيل شو.

وريسې د نندارتون مشر وويل: زموږ لاسي صنايع شړۍ، ليمخي، غالۍ، تغر، د مريو خولۍ او نور دي. دا ټول نړيوال شهرت لري. موږ بايد د لاسي صنايعو لپاره د کار مناسب ځايونه ولرو.

وريسې يوه سوداګر وويل: زموږ لاسي صنايع په بهرنيو هېوادونو کې ډېر مينه وال لري. د پلورلو لپاره يې بايد مناسب بازارونه پيدا شي. دولت بايد د کسبګرو ستونزې واوري او حل يې کړي. وروسته نندارچيانو د نندارتون ټول لاسي صنايع وليدل. نندارتون په دعا کولو سره پای ته ورسېد.



## کلمې او جملې



| منفي فعل |
|---|
| نه ځم |
| نه پېژنم |
| نه دی |
| نه ځي |
| نه اوبدي |

۱. زه پکتیا ته ځم. زه پکتیا ته (نه ځم).

۲. زه لاسي صنایع پېژنم. زه لاسي صنایع (      ).

۳. میرویس د لاسي صنایعو نندارتون ته ځي.

میرویس د لاسي صنایعو نندارتون ته (      ).

۴. زرلښته لیمڅی اوبدي. زرلښته لیمڅی (      ).

۵. خالد سوداګر دی. خالد سوداګر (      ).



## د لغتونو زېرمه



| | | | |
|---|---|---|---|
| غالۍ | پلار | مسواک | کریم |
| مرسته | تغر | برس | درناوی |
| مور | مهرباني | اولادونه | شړۍ |

| لاسي صنایع | ټولنیزې اړیکې | کورنۍ | د غاښونو د پاکولو وسایل |
|---|---|---|---|
| غالۍ | مرسته | مور | مسواک |
| ________ | ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ | ________ |



## د لومړي متن بیا لوستل





## کلمې او جملې

| | | |
|---|---|---|
| ځم | نه + ځم | نه ځم. |
| ګرځم | نه + ګرځم | نه ګرځم. |
| کوم | نه + کوم | نه کوم. |
| وړم | نه + وړم | نه وړم. |



غونډه کسبګر نندارچیان



# آهنګر

د غبرګولي پر دویمه په کابل کې د آهنګرۍ نندارتون جوړ شو. د ملي ټلویزیون خبریال وویل چې غونډه د قرآن کریم په تلاوت پیل شوه. بیا د کسبګرو مشر محمد شریف د آهنګرۍ په باره کې خبرې وکړې. هغه وویل چې آهنګري له اوسپنې څخه د ډول ډول شیانو جوړولو ته وایي.

ځینې ځوانان چې بې کاره وو، اوس په آهنګرۍ بوخت دي. په نندارتون کې بېلچې، کولنګ، تبر، ترېشځ، لور، رمبی او نور شیان وو. ننداراچیانو



د آهنګرۍ سامانونه وکتل. ځینو خلکو د خپل ضرورت وړ شیان ترې واخیستل. کسبګر ډېر خوشحاله وو. ژمنه یې وکړه چې نور به هم ښه ښه شیان جوړ کړي. دغه نندارتون د ننداري لپاره درې ورځې پرانیستی و.



## جملې



| مرکبې | | ساده |
| --- | --- | --- |
| توريالی درس لولي او بريالی ورسره مرسته کوي. | | ۱ توريالی درس لولي. بريالی ورسره مرسته کوي. |
| ---------------- | | ۲ ښاځگه تلاوت کوي. احمد ورته غوږ نيسي. |
| ---------------- | | ۳ تنکيالی له بې وزلو سره مرسته کوي. مرسته کول ښه کار دی. |



## د لغتونو زيرمه



| | | | |
| --- | --- | --- | --- |
| خوشحالي | اوړی | ډار | زده کوونکی |
| درسي مواد | پسرلی | يکشنبه | ژمی |
| شنبه | ښوونکی | خپگان | سه شنبه |

| احساسات | ټولگي | داونۍ ورځې | د کال فصلونه |
| --- | --- | --- | --- |
| خوشحالي | درسي مواد | شنبه | ژمی |
| ---------- | ---------- | ---------- | ---------- |
| ---------- | ---------- | ---------- | ---------- |



د دويم متن بيا لوستل







غوږ نیول او خبرې کول

دشخړو حلول: بخښنه غوښتل





نوښتې لیکنه



بخښنه غوښتل او بخښنه کول دواړه ښه کارونه دي.

| |
|---|
| غلطي |
| ستونزه |
| ملګري |
| اړیکې |

______________________

______________________

______________________

______________________

موږ باید له خلکو بخښنه وغواړو او نورو ته بخښنه وکړو.



د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې



### الف

| منفي فعل |
| --- |
| نه‌پېژنم |
| نه خاندم |
| نه‌اخلي |
| نه‌جوړوي |

۱. زه خاندم.
زه (نه خاندم).
۲. زه لاسي صنایع پېژنم.
زه لاسي صنایع (      ).
۳. وحیده جامې اخلي.
وحیده جامې (      ).
۴. آهنګر ډول ډول شیان جوړوي.
آهنګر ډول ډول شیان (      ).

### ب

۱. سلام اکا آهنګر دی.
زوی یې مرسته ور سره کوي.
سلام اکا آهنګر دی او زوی یې مرسته ور سره کوي.

۲. همت زرګر دی.
عبدالله زرګري زده کوي.
------------

۳. هیلې غالۍ اوبدې.
هاجره مرسته ور سره کوي.
------------

### ج

| | | | |
| --- | --- | --- | --- |
| بایسکلونه | حمل | غالۍ | موټرونه |
| شړۍ | درناوی | خبره منل | سلام |
| موټرسایکل | جوزا | ثور | تغر |

| لاسي صنایع | د پسرلي میاشتې | سرک | مور |
| --- | --- | --- | --- |
| شړۍ | حمل | بایسکلونه | سلام |
| ------ | ------ | ------ | ------ |
| ------ | ------ | ------ | ------ |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا





توري او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| ه | فریده | ګوره | لښته |
| ﻫ | هرات | هګۍ | مهال |
| ح | حج | محمود | اصلاح |



دنده | مبارک | ټولنه



## دنده اړتیا ده

پرون د دندې د اړتیا او ارزښت په باره کې غونډه وه. غونډه د کابل په نوي ښار کې جوړه شوې وه. غونډې ته ګڼ شمېر خلک راغلي وو. په پیل کې د قرآن کریم څو مبارک آیتونه تلاوت شول. وروسته د کار او ټولنیزو چارو رییس وویل: دنده یا وظیفه یوه ټولنیزه اړتیا ده. باید خپلې دندې پر خپل وخت او سمې ترسره کړو. ټولنیزې ستونزې به له دې سره کمې شي. په یوه ټولنه کې بېلابېلې دندې وي. ښوونکی زده کوونکو ته تدریس کوي.



ډاکټر د ناروغانو درملنه کوي. انجنیر کورونه او ودانۍ جوړوي. بزګر په کرنه بوخت وي. پولیس امنیت ساتي. که خپلې دندې په صداقت ترسره کړو، ټولنه به مو هوسا وي. ژوند به مو ښه شي د هېواد په آبادۍ کې به مو ونډه اخیستې وي.



## کلمې او جملې



۱. زه ټلويزيون ګورم.  زه ټلويزيون نه ګورم.
۲. غونډه جوړه شوه.  غونډه جوړه ______.
۳. ستونزې په کې وې.  ستونزې په کې ______.
۴. خبريال خبر ورکوي.  خبريال خبر ______.
۵. ښوونکی په اداره کې ستونزه لري.
ښوونکی په اداره کې ستونزه ______.

**منفي فعل**

نه ګورم
نه ورکوي
نه لري
نه شوه
نه وې



## د لغتونو زېرمه



| | | | |
|---|---|---|---|
| ښوونکی | خبرونه | زده کوونکی | سور |
| تور | زړه خوږی | مرسته | ښه چلند |
| خبريال | زرغون | سرښوونکی | مرکه |

| ښوونځی | ملي بيرغ | ټلويزيون | نيکي |
|---|---|---|---|
| سرښوونکی | تور | خبريال | زړه خوږی |
| ______ | ______ | ______ | ______ |
| ______ | ______ | ______ | ______ |



## د لومړي متن بيا لوستل





## کلمې او جملې

| | | |
|---|---|---|
| وینم | نه + وینم | نه وینم. |
| کرم | نه + کرم | نه کرم. |
| اورم | نه + اورم | نه اورم. |
| مینځم | نه+ مینځم | نه مینځم. |



شور حکمت برکت



## د ښوونکي ترانه



هغوی ودان دي پر مخ روان دي
ښوونکی، ښوونکي چې پر چا ګران دي
چې نه يې شور وي چې نه يې ځوږ وي
چې د ښوونکو سبق ته غوږ وي
دا نو بې شکه ښه شاګردان دي
که علم، پوهه او که حکمت دی
بس د ښوونکو په برکت دی




## جملې

| ساده | مرکبې |
| --- | --- |
| ۱ مشر شفقت کوي. کشر درناوی کوي. | مشر شفقت کوي او کشر درناوی کوي. |
| ۲ ښوونکی درس ورکوي. زده کوونکي غوږ نیسي. | ---------------- |
| ۳ حمیرا د ښوونکي ترانه لولي. نور ټولګیوال یې اوري. | ---------------- |




## د لغتونو زېرمه

| | | | |
| --- | --- | --- | --- |
| یو ګون | یوم | آذان | انځورګري |
| رسامي | لسګون | لمونځ | کښت |
| محراب | پټی | خطاطي | سلګون |

| افغانۍ | جومات | هنر | بزګر |
| --- | --- | --- | --- |
| یو ګون | محراب | رسامي | یوم |
| ________ | ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ | ________ |


د دویم متن بیا لوستل







غوږ نیول او خبرې کول



ټولنیز مثبت مهارتونه: د یوې ښې ټولنې جوړول







نوښتي لیکنه

د هر چا خوښېږي چې په ټولنه کې ژوند وکړي.

زما خوښېږي چې له خپلو خلکو سره مرسته وکړم.

| |
|---|
| یو ځای |
| بخښنه کول |
| مسوولیت |
| جوړول |
| مثبت |





د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې



**الف**

| | |
|---|---|
| ۱. زه ټلويزيون ګورم. | زه ټلويزيون نه ګورم. |
| ۲. اتل خبرونه وايي. | اتل خبرونه ______. |
| ۳. مدينه درس ورکوي. | مدينه درس ______. |
| ۴. غوټۍ کتاب لولي. | غوټۍ کتاب ______. |

**منفي فعل**

نه ګورم
نه ورکوي
نه لولي
نه وايي

**ب**

۱ مشر شفقت کوي.
کشر يې درناوى کوي.

مشر شفقت او کشر يې درناوى کوي.

۲ مور خبرې کوي.
ماشومان يې خبرې اوري.

------------------------------

۳ حميد ګلان کري.
خالد اوبه ورکوي.

------------------------------

**ج**

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يوګون | مېز | غږ | کښت | زړه خوږى | يوم |
| ښه چلند | ثوکى | مرسته | لسګون | سل ګون | تخته |

| ټولګى | افغانى | نيکي | بزګر |
|---|---|---|---|
| مېز | لسګون | ښه چلند | کښت |
| ________ | ________ | ________ | ________ |
| ________ | ________ | ________ | ________ |



## د لومړي او دويم متن بيا لوستل









## املا






توري او کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| ملي | تولګي | دولتي | ي |
| شتمني | يرغل | احمدزی | ی |
| سرې | درناوی | کلی | |




روغتون | پارکونه | درملنه

## ملي شتمني



ملي شتمني څه ته وايي؟

هغه څه چې د وطن د ټولو خلکو دي، ملي شتمني بلل کېږي: ښوونځي، پوهنتونونه، روغتونونه، پارکونه، سيندونه، غرونه، ځنګلونه، کانونه او نور ټول ملي شتمنۍ دي. همدارنګه سړکونه، پلونه، بندونه، د برېښنا ستنې او مزي هم ملي شتمنۍ دي. ملي يې ځکه بولي چې ګټه يې ټولو هېوادوالو ته رسېږي. د ښلګي په توګه، په ښوونځي کې د هر چا بچيان سبق وايي. په روغتون کې د هر چا د ناروغ درملنه کېږي. خلک بايد خپلې ملي شتمنۍ خپل مال وګڼي او ښې يې وساتي. ستاسو ښوونځی، ټولګي، مېزونه، څوکۍ او کتابونه ملي شتمنۍ دي. نن تاسې له دې شيانو ګټه اخلئ، سبا به نور زده کوونکي ترې ګټه اخلي. پام وربانديې وکړئ چې خراب نه شي.




## کلمې

| کلمه | بې + کلمه | کلمه | کلمه | بې + کلمه | کلمه |
|---|---|---|---|---|---|
| ګټي | بې + ګټي | بې ګټي | واک | بې + واک | بې واکه |
| مزه | بې + مزي | بې مزي | پروا | بې + پروا | بې پروا |
| زړه | بې + زړه | بې زړه | کار | بې + کار | بې کاره |
| وطن | بې + وطنه | بې وطنه | خوله | بې + خولې | بېخولې |




## د لغتونو زېرمه

| الف | ب |
|---|---|
| سره | بدي |
| لږ | ژړل |
| ګټه | سپین |
| نیکي | توده |
| خندل | ناپوه |
| تور | تاوان |
| پوه | ډېر |




## د لومړي متن بیا لوستل



## کلمې

| | | |
|---|---|---|
| کار | بې + کاره | بې کاره |
| لار | بې + لارې | بې لارې |
| مینه | بې + مینې | بې مینې |
| کور | بې + کوره | بې کوره |



اوسپنه   کان   بټۍ



# د حاجیګک کان



بېل، ښتک، تبر، کولنګ، موټر او بایسیکل خو مو لیدلي دي. څه فکر کوئ، دا شیان له څه شي څخه جوړېږي؟ دا او ډېر نور شیان له اوسپنې څخه جوړېږي. پوهېږئ چې اوسپنه چېرته پیدا کېږي؟

اوسپنه په کان کې وي. د حاجیګک د اوسپنې کان د بامیانو په ولایت کې دی. دغه کان ډېره اوسپنه لري. اوسپنه په ډبرو کې ګډه وي. انجینیران له کان څخه د اوسپنې ډبرې راباسي. وروسته یې په بټیو کې اچوي. په بټیو کې ډبرې ویلې کېږي چې اوسپنه له نورو توکو بېله شي. وروسته له اوسپنې څخه بېلا بېل شیان جوړېږي. که دولت کانونه راوباسي، د وطن اقتصاد به مو پرې پیاوړی شي.




## کلمې او جملې

۱. مور ملي شتمني ساتو. چې چا ته اړ نه شو.
مور ملي شتمني ساتو (ځکه) چې چا ته اړ نه شو.

۲. زه راغلم. ته نه وې.
زه راغلم ( ) ته نه وې.

۳. مور کور ته ځو. بریالی ښوونځي ته ځي.
مور کور ته ځو ( ) بریالی ښوونځي ته ځي.

کلمې

ځکه
خو
او





## د لغتونو زېرمه

۱. زه سړې اوبه څښم. (تودې)

۲. مور تور رنګ خوښوو. ( )

۳. ښوونکي په خندا راغلل. ( )

۴. هغوی ګټه کوي. ( )

۵. زمور هېواد ډېرې ملي شتمنۍ لري. ( )

۶. مور د ورځې کار کوو. ( )

کلمې

سپین
تودې
ژړا
لږې
تاوان
شپې



د دویم متن بیا لوستل






غوږ نیول او خبرې کول

زیار او زحمت: په مثبته توګه د ځان پېژندل او پر ځان باور






نوښتي لیکنه

دا مهمه ده چې تاسو باید خپلې ځانګړتیاوې وپېژنئ.
ستاسو ځانګړتیاوې ستاسو ورتیاوې دي.

| |
|---|
| درناوی |
| ویاړ |
| تولنه |

ځینې خلک په لوستلو کې غښتلي وي. ځینې نور بیا په غوږ نیولو کې تکړه او پیاوړي وي.

که پر ځانونو باور ولرئ، نو کولی شئ د ژوندانه ستونزې مو حل کړئ.




د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې

الف

| کلمه | بې کلمه |
|---|---|
| لارې | بې لارې |
| رنګ | بې رنګه |
| ځای | بې ځایه |
| خولې | بې خولې |

ب

| الف | ب |
|---|---|
| شپه | خوښي |
| لوړ | جګړه |
| خواږه | ترخه |
| دروند | تیټ |
| غم | ورځ |
| سوله | سپک |

ج

کلمې: ځکه، خو، او

۱. زه اوبه څښم. چې تږی یم.
زه اوبه څښم (ځکه) چې تږی یم.

۲. زه درځم. ته هم راشه.
زه درځم (      ) ته هم راشه.

۳. موږ کور ته ځو. بریالی ښوونځي ته ځي.
موږ کور ته ځو (      ) بریالی ښوونځي ته ځي.





## د لومړي او دویم متن بیا لوستل







## املا





تورې او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| بېل | ډبرې | اوسپنې | ې |
| ګوړئ | وساتئ | پوهېږئ | ئ |
| ګلالۍ | ښاپېرۍ | هیلۍ | ی |



پِسته   خوندوره   خوندي



## د پِستې ځنګل



افغانستان د پِستې لوی لوی ځنګلونه لري. دغه ځنګلونه په بدخشان، تخار، بغلان، سمنګان، فاریاب، بادغیس او هرات کې دي.

د پِستې ونې په خپله هم شنې کېږي. ډېرې اوبه نه غواړي. د باران په اوبو هم خړوبېږي. دا ونې په خاورينو غونډیو کې ښه وده کوي او اوږد عمر لري.

د پِستې په ځنګلونو کې ډول ډول ځناور او مرغان ژوند کوي. شا او خوا ورسره ښکلې او ګلالۍ ښکاري. هلته ځوک مېږې او وزې نه څروي، ځکه چې د پِستې تنکي نيالګي خرابوي. د پِستې ونې خوندوره مېوه نيسي. د پِستې خوړل ګټه لري. ګوړئ! د افغانستان پسته په دنيا کې ښه نوم لري. پسته نورو هېوادونو ته هم استول کېږي. لَه دې لارې وطن ته ډېرې پيسې راځي، نو راځئ چې د پِستې خپل ځنګلونه خوندي وساتو.



## کلمې



| | | |
|---|---|---|
| | |  |
| ۱. جوړه | بې جوړه |  |
| ۲. وطن | بې وطنه |  |
| ۳. ځم | بې ځم |  |
| ۴. خورم | بې خورم |  |
| ۵. ژبه | بې ژبې |  |
| ۶. هرات | بې هرات |  |



## د لغتونو زېرمه



| الف | ب |
|---|---|
| یوم | ډېره |
| ځروي | ړنګوي |
| ښکاري | ببل |
| هېواد | پیایي |
| خرابوي | لېږل |
| استول | معلومېږي |
| تیره | وطن |



## د لومړي متن بیا لوستل





## کلمې

| کلمه | بې + کلمه | کلمه |
| --- | --- | --- |
| وعده | بې + وعدې | بې وعدې |
| کار | بې + کاره | بې کاره |
| وفا | بې + وفا | بې وفا |



خرڅلاو شتمني مسلکي



## زمرُد



زمرُد یوه قیمتي او ارزښتناکه ډبره ده. زمرُد په ګاڼو کې کارول کېږي. همدارنګه د فضايي بېړیو په جوړولو کې ورنه کار اخېستل کېږي. زموږ د هېواد د پنجشېر او بدخشان په غرونو کې د زمرُدو کانونه شته. دا زمرُد د نورو هېوادونو د زمرُدو په پرتله شفاف او راڼه دي. زمرُد چې کله له کان څخه را وایستل شي، بیا ډلبندي کېږي. له ډلبندۍ وروسته د خرڅلاو لپاره کورنیو او بهرنیو بازارونو ته استول کېږي. د افغانستان زمرُد په نړیوالو بازارونو کې لوړه بیه لري. کانونه د افغانانو ملي شتمنۍ دي. په کار ده چې ټول کانونه په قانوني او مسلکي توګه راوایستل شي. له دې سره به هېواد آباد او د خلکو اقتصاد به پیاوړی شي.



## کلمې او جملې



۱. خیبر پِسته اخلي. شمشاد زمرد خرڅوي.
خیبر پِسته اخلي (او) شمشاد زمرد خرڅوي.
۲. ډېوه راغله. نسیمه رانغله.
ډېوه راغله ( ) نسیمه رانغله.
۳. زه ځم. چې پلار مې راغی.
زه ځم ( ) چې پلار مې راغی.

کلمې
او
خو
ځکه



## د لغتونو زېرمه



۱. زه له لارې تېرېږي لرې کوم.
۲. په هېواد کې پِسته کرو.
۳. د غره پر سر لمر ښکاري.
۴. نصیر په لوړ ځای ولاړ دی.
۵. زمرد په لوړه بیه پلورل کېږي.
۶. د افغانستان پِسته په نړۍ کې مشهوره ده.

کلمې
وطن
ډبرې
جګ
معلومېږي
دنیا
خرڅېږي



## د دویم متن بیا لوستل






غوږ نیول او خبرې کول

زیار او زحمت: د موخو ټاکل







نوښتي لیکنه


د موخو ټاکل د هر چا لپاره مهم دي.

د موخو ټاکل درسره مرسته کوي چې خپلو هیلو ته ورسېږئ.

| |
|---|
| کار |
| پلان |
| ستونزې |
| حل لاره |

موخو ته د رسېدو لپاره تاسو باید ټول ضروري کارونه او پړاوونه وپېژنئ.


د لومړي او دویم متن بیا لوستل


## کلمې او جملې

الف

| ✗ | ✓ | |
|---|---|---|
| | ✓ | ۱- جوړې بې جوړې |
| | | ۲- ځم بې ځم |
| | | ۳- کار بې کاره |
| | | ۴- هرات بې هرات |

ب



| الف | ب |
|---|---|
| نجار | هټۍ |
| پلورل | ترکاڼ |
| دوکان | لېږل |
| خرابوي | خرخول |
| استول | وطن |
| هېواد | رنګوي |

ج

کلمې: ځکه، خو، او

۱. زه درس وایم. درس ویل ښه کار دی.
زه درس وایم (ځکه) درس ویل ښه کار دی.

۲. زه تږی وم. اوبه نه وې.
زه تږی وم (     ) اوبه نه وې.

۳. اتل ښوونځي ته ځي. محمد کور ته ځي.
اتل ښوونځي ته ځي (     ) محمد کور ته ځي.



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا






توري او کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| برقي | مزي | ښوونځي | ي |
| پوهېږئ | وژغورئ | ولیکئ | ئ |
| نرۍ | سپوږمۍ | چترۍ | ۍ |


توربین | وړانګې | لګښت


## بریښنا



هغه ماشین چې بریښنا تولیدوي، توربین یا ډاینمو بلل کېږي. توربین په اوبو، باد، ګاز او بخار تاوېږي. که د لمر وړانګې په لمریزو ښیښو پرېوځي هم بریښنا تولیدېږي. بریښنا د مزو په وسیله کورونو، ښارونو، فابریکو او روغتونو ته لېږدول کېږي. بریښنا ماشینونه په حرکت راولي. څراغونه روښانه کوي. اوتو، بخارۍ، یخچال او د کور نور برقي وسایل په بریښنا چلېږي. په برقي وسایلو کارونه آسانېږي. د بریښنا په لګولو کې احتیاط په کار دی. که بریښنا بې ځایه ولګوو، ډېر لګښت راباندې راځي. همدارنګه بیا نورو خلکو ته پوره بریښنا نه رسېږي. ګورئ! د بریښنا لوخو مزو ته لاس ور وړل خطر لري. که بریښنا خرابه شي یا یې مزي پرې شي، برقي خبر کړئ.



## کلمې



| | | ✓ | × |
|---|---|---|---|
| ۱. حوصله | بې حوصلې | ✓ | |
| ۲. ورېړ | بې وړم | | × |
| ۳. خوند | بې خونده | | |
| ۴. کبر | بې کبره | | |
| ۵. خورم | بې خورم | | |
| ۶. عقل | بې عقل | | |



## د لغتونو زېرمه



| متضادې کلمې | | مترادفې کلمې | |
|---|---|---|---|
| وینښ | تیاره | لرغوني | مصرف |
| اتفاق | ویده | ښایسته | پخواني |
| خواږه | بې اتفاقي | لګښت | تنده |
| جګ | دروغ | تندی | ښکلی |
| رښتیا | ترخه | ذخیره | پام |
| تور | ټیټ | شتمني | زېرمه |
| رڼا | سپین | احتیاط | دارایي |



## د لومړي متن بیا لوستل





کلمې

| | | |
|---|---|---|
| فکر | بې + فکره | بې فکره |
| کار | بې + کاره | بې کاره |
| کور | بې + کوره | بې کوره |
| باک | بې + باکه | بې باکه |



معدن | ګاز | برکتې



## ملي شتمني



غر، ځنګل دی که معدن
شریک مال د ټول وطن

دا د ځمکې لاندې ګاز
دا د ځمکې لاندې تېل

دغه شته د ټول ولس
نه چې ګوښې دي یا ببل

په ملي شتمنۍ ټول
د هېواد بچې شتمن

غر، ځنګل دی که معدن
شریک مال د ټول وطن

که رنې رنې اوبه
که دي کانې قیمتي

دا خوږه خوږه هوا
پرې وطن برکتې

دا وطن دې وي باغ باغ
وي دې شین لکه چمن

غر، ځنګل دی که معدن
شریک مال د ټول وطن



## کلمې او جملې



۱. زه د قیمتي ډېرو دوکان لرم. ادریس د تېلو سوداګر دی.
زه د قیمتي ډېرو دوکان لرم (او) ادریس د تېلو سوداګر دی.

۲. حمیده هګۍ پخوي. نسیمه یې نه خوري.
حمیده هګۍ پخوي ( ) نسیمه یې نه خوري.

۳. سهار وختي پاڅېدم. په وخت ښوونځي ته ورسېدم.
سهار وختي پاڅېدم ( ) په وخت ښوونځي ته ورسېدم.

**کلمې**
او
خو
ځکه



## د لغتونو زېرمه



۱. زمونږ هېواد ډېرې قیمتي ډبرې لري. (زیاتې)

۲. هوا ډېره سړه ده. ( )

۳. د زرمیني تور رنګ خوښېږي. ( )

۴. ښکلا له ړنا سره مرسته کوي. ( )

۵. زمونږ کور ښایسته دی. ( )

۶. مونږ د برېښنا د بې ځایه لګښت مخه نیسو. ( )

**کلمې**
ګرمه
زیاتې
سپین
کومک
مصرف
ښکلې



## د دویم متن بیا لوستل







غوږ نیول او خبرې کول

زیار او زحمت: څنګه خپلو موخو ته ورسېږو؟








نوښتي لیکنه

خپلو موخو ته د رسېدو لپاره، پلان جوړول ډېر مهم دي.

زما موخه دا ده چې:

| | |
|---|---|
| ________________ | خدمت |
| ________________ | مشوره |
| ________________ | راتلونکې |
| ________________ | زیار او زحمت |





د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې

**الف**

| | ✓ | × |
|---|---|---|
| ۱. پیسې بې پیسو | ✓ | |
| ۲. ورم بې ورم | | × |
| ۳. خوند بې خونده | | |
| ۴. سیند بې سینده | | |

**ب**

| الف: مترادفې کلمې | ب: مترادفې کلمې |
|---|---|
| ښایسته | ماشومان |
| لرغونی | پخوانی |
| کوچنیان | ښکلی |

| الف: متضادې کلمې | ب: متضادې کلمې |
|---|---|
| ویښ | دروغ |
| دوستي | دښمني |
| رښتیا | ویده |

**ج**

۱. زه قیمتي ډېرې اخلم. غوټۍ قیمتي ډېرې خوښوي.
زه قیمتي ډېرې اخلم (او) غوټۍ قیمتي ډېرې خوښوي.
۲. لوست مې زده دی. املا هم باید زده کړم.
لوست مې زده دی (        ) املا هم باید زده کړم.
۳. زه بینډۍ ډېرې خورم. خوښېږي مې.
زه بینډۍ ډېرې خورم (        ) خوښېږي مې.

| کلمې |
|---|
| ځکه |
| خو |
| او |



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا





توري او کلمې



| | | | |
|---|---|---|---|
| اوبه | میده | هغه | ه |
| هوا | خمیره | مهرباني | هـ |
| ګاونډیان | جوړوي | ملګري | ي |



مواد ماشین خوند



## کاغذ څنګه جوړېږي؟



پرون زده کوونکي د کاغذ جوړولو فابریکې ته تللي وو.

د فابریکې رییس وویل: پخوا به خلکو پر تیږو، د حیواناتو پر پوستکو او نورو شیانو لیکل کول. وروسته بیا کاغذ جوړ شو.

جاوېد پوښتنه وکړه: کاغذ له څه شي څخه او څنګه جوړېږي؟

هغه ځواب ورکړ: کاغذ له ونو څخه جوړېږي. د پرې کړو ونو پوستکي لرې کېږي او په ماشین میده کېږي. بیا اوبه ورسره ګډېږي چې خمیره شي. وروسته ځینې نور مواد ورا چول کېږي چې سپین او کلک شي. بیا ماشین کاغذ هواروي او وچوي یې. وروسته یې بل ماشین پرې کوي. کاغذ له کارول شویو کاغذونو هم جوړېږي.

زده کوونکو د فابریکې له کتلو خوند واخیست.



## کلمې او جملې



۱. کاغذ له ونو څخه جوړېږي.
۲. احمد کاغذونه اخلي.
۳. ماشین کاغذونه میده کوي.

**منفي کلمې**

نه اخلي
نه جوړېږي
نه میده کوي



## جملې



۱. زه فابریکې ته ځم. ته کور ته لاړ شه.
زه فابریکې ته ځم (خو) ته کور ته لاړ شه.
۲. مورې له بې وزلو سره مرسته کوو. اړتیا ورته لري.
مورې له بې وزلو سره مرسته کوو ( ) اړتیا ورته لري.
۳. هغوی اوبه څښي. تاسې شربت وڅښئ.
هغوی اوبه څښي ( ) تاسې شربت وڅښئ.

**کلمې**

او
خو
ځکه



## د لغتونو زېرمه

| کرنه | اهنګر | ملي شتمني |
| --- | --- | --- |
| کښت | څټک | ځنګل |
| __________ | __________ | __________ |
| __________ | __________ | __________ |
| __________ | __________ | __________ |

کښت، څټک، ځنګل، اوبه، ترنبخ، معدن، تخم، رنده، افغاني



## د لومړي متن بیا لوستل





## توري او کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| سړي | منګي | قوي | ي |
| درناوی | منګی | ملګری | ی |
| وګورئ | وخورئ | وخښئ | ئ |
| شيدې | خاورې | ناوې | ې |
| نرۍ | نجلۍ | افغانۍ | ۍ |



نهرونه   کبان   خړوبېږي



# د اوبو بندونه



د اوبو بندونه څه ګټې لري؟
چېرته چې واورې يا بارانونه ډېر ورېږي، سيندونه يې ډېرې اوبه لري.
پر سيندونو بندونه جوړېږي. اوبه له بندونو څخه نهرونو او ويالو ته ځي.
بندونه ډېرې ګټې لري. بندونه د اوبو د بې ځايه تللو مخه نيسي. له بندونو څخه د برېښنا په توليد کې هم کار اخيستل کېږي. چېرته چې اوبه وي هلته مرغان هم ډېر وي. په بندونو او ډنډونو کې کبان روزل کېږي. د بندونو په اوبو ډېرې کرنيزې ځمکې اوبه کېږي. همدا رنګه ونې او باغونه پرې خړوبېږي. د بندونو په اوبو ډول ډول ترکاري او غلې دانې کرل کېږي. د اوبو بندونه ډېرې ګټې لري.
بايد د اوبو بندونه ښه وساتو. اوبه بايد بې ځايه ونه لګوو.



## کلمې



| | | ✓ | × |
|---|---|---|---|
| ۱. کوم | بې کوم | | × |
| ۲. فکر | بې فکره | ✓ | |
| ۳. ګورم | بې ګورم | | |
| ۴. پروا | بې پروا | | |

| | | ✓ | × |
|---|---|---|---|
| ۱. خورم | بې خورم | | × |
| ۲. کار | بې کاره | ✓ | |
| ۳. درس | بې درسه | | |
| ۴. ویده | بې ویده | | |

۱. زه ځم.          ناوخته ده.
زه ځم (ځکه) ناوخته ده.
۲. اتل کتاب لري.          درس نه لولي.
اتل کتاب لري (      ) درس نه لولي.
۳. د مشرانو درناوی کوو.          پر کشرانو شفقت.
د مشرانو درناوی کوو (   ) پر کشرانو شفقت.

کلمې
ځکه
خو
او



## د لغتونو زېرمه



۱. زه خپلې پیسې ښې ساتم. ( روپۍ )
۲. هلکان ښوونځي ته ځي. (        )
۳. مور ړنا خوښوو. (        )
۴. کاغذ سپین رنګ لري. (        )
۵. زمونږ هېواد ښکلی دی. (        )

کلمې
مکتب
روپۍ
تیاره
ښایسته
تور



د دویم متن بیا لوستل










غوږ نیول او خبرې کول

زیار او زحمت: د ستونزو حلول






نوښتي لیکنه

د ستونزو حلول مهم او ضروري دي.

| | |
|---|---|
| ________________ | کوښښ |
| ________________ | زحمت |
| ________________ | پړاوونه |
| ________________ | مرسته |

موخو ته د رسېدو لپاره باید له ستونزو سره مقابله وکړو.




د لومړي او دویم متن بیا لوستل



## کلمې او جملې



**الف**

| | | ✓ | × |
|---|---|---|---|
| ۱. موخه | بې موخې | ✓ | |
| ۲. زیان | بې زیانه | | |
| ۳. خوند | بې خونده | | |
| ۴. شبنم | بې شبنم | | |

**ب**

| الف مترادفې کلمې | ب متضادې کلمې |
|---|---|
| نیکي | انډیوال |
| ملګری | دنیا |
| نړۍ | ښېګڼه |

| الف متضادې کلمې | ب متضادې کلمې |
|---|---|
| ویښ | سپک |
| دروند | سپکاوی |
| درناوی | ویده |

**ج**

۱. زه ښوونځي ته ځم.   غواړم چې ښوونکی شم.

زه ښوونځي ته ځم (ځکه) غواړم چې ښوونکی شم.

۲. احمد لوبې کوي.   اجمل لوبې نه کوي.

احمد لوبې کوي (   ) اجمل لوبې نه کوي.

۳. میرویس کورنۍ دنده لیکي.   خانګه کتاب لولي.

۴. میرویس کورنۍ دنده لیکي (   ) خانګه کتاب لولي.

**کلمې**

ځکه

او

خو



## د لومړي او دویم متن بیا لوستل









## املا

